

# ملي سرود

دا وطن افغانستـان دی
کور د سولې کور د تورې
دا وطن د ټولـو کـور دی
د پښتـون او هـزاره وو
ورسره عرب، گوجر دي
براهوي دي، قزلباش دي
دا هیـواد به تل ځلیږي
په سینه کې د آسیا به
نوم د حق مـو دی رهبـر

دا عـزت د هـر افغان دی
هر بچی یې قهرمـان دی
د بـلـوڅـو د ازبکـو
د تـرکمنـو د تـاجکـو
پـامیریـان، نـورستانیـان
هـم ایمـاق، هم پشه یان
لکه لمر پر شـنه آسـمان
لکـه زړه وي جـاویـدان
وایـو الله اکبر وایو الله اکبر

بسم الله الرحمن الرحيم




د پوهنې وزارت

# پښتو

## يوولسم ټولګی

د چاپ کال: ۱۳۹۸ هـ. ش.

# د کتاب ځانګړتیاوې

**مضمون:** پښتو

**مؤلفین:** د تعلیمي نصاب د پښتو ژبې او ادبیاتو څانګې د درسي کتابونو مؤلفین

**اېډېټ کوونکي:** د پښتو ژبې د اېډېټ ډیپارټمنټ غړي

**ټولګی:** یوولسم

**د متن ژبه:** پښتو

**انکشاف ورکوونکی:** د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د تألیف لوی ریاست

**خپروونکی:** د پوهنې وزارت د اړیکو او عامه پوهاوي ریاست

**د چاپ کال:** ۱۳۹۸ هجري شمسي

**د چاپ ځای:**

**چاپخونه:**

**برېښنالیک پته:** curriculum@moe.gov.af

## د پوهنې د وزیر پیغام

اقرأ باسم ربک

د لوی او ښښونکي خدای ﷻ شکر په ځای کوو، چې موږ ته یې ژوند رابښلی، او د لوست او لیک له نعمت څخه یې برخمن کړي یو، او د الله تعالی پر وروستي پیغمبر محمد مصطفی ﷺ چې الهي لومړنی پیغام ورته (لوستل) و، درود وایو.

څرنګه چې ټولو ته ښکاره ده ۱۳۹۷ هجري لمریز کال د پوهنې د کال په نامه ونومول شو، له دې امله به د ګران هېواد ښوونیز نظام، د ژورو بدلونونو شاهد وي. ښوونکی، زده‌کوونکی، کتاب، ښوونځی، اداره او د والدینو شوراګانې د هېواد د پوهنیز نظام شپږګوني بنسټیز عناصر بلل کیږي، چې د هېواد د ښوونې او روزنې په پراختیا او پرمختیا کې مهم رول لري. په داسې مهم وخت کې د افغانستان د پوهنې وزارت د مشرتابه مقام، د هېواد په ښوونیز نظام کې د ودې او پراختیا په لور بنسټیزو بدلونونو ته ژمن دی.

له همدې امله د ښوونیز نصاب اصلاح او پراختیا، د پوهنې وزارت له مهمو لومړیتوبونو څخه دي. همدارنګه په ښوونځیو، مدرسو او ټولو دولتي او خصوصي ښوونیزو تأسیساتو کې، د درسي کتابونو محتوا، کیفیت او توزیع ته پاملرنه د پوهنې وزارت د چارو په سر کې ځای لري. موږ په دې باور یو، چې د باکیفیته درسي کتابونو له شتون پرته، د ښوونې او روزنې اساسي اهدافو ته رسېدلی نشو.

پورتنیو موخو ته د رسېدو او د اغېزناک ښوونیز نظام د رامنځته کولو لپاره، د راتلونکي نسل د روزونکو په توګه، د هېواد له ټولو زړه سواندو ښوونکو، استادانو او مسلکي مدیرانو څخه په درناوي هیله کوم، چې د هېواد بچیانو ته دې د درسي کتابونو په تدریس، او د محتوا په لېږدولو کې، هیڅ ډول هڅه او هاند ونه سپموي، او د یوه فعال او په دیني، ملي او انتقادي تفکر سمبال نسل په روزنه کې، زیار او کوښښ وکړي. هره ورځ د ژمنې په نوي کولو او د مسؤولیت په درک سره، په دې نیت لوست پیل کړي، چې د نن ورځې ګران زده‌کوونکي به سبا د یوه پرمختللي افغانستان معماران، او د ټولنې متمدن او ګټور اوسېدونکي وي.

همدا راز له خوږو زده کوونکو څخه، چې د هېواد ارزښتناکه پانګه ده، غوښتنه لرم، څو له هر فرصت څخه ګټه پورته کړي، او د زده کړې په پروسه کې د ځیرکو او فعالو ګډونوالو په توګه، او ښوونکو ته په درناوي سره، له تدریس څخه ښه او اغېزناکه استفاده وکړي.

په پای کې د ښوونې او روزنې له ټولو پوهانو او د ښوونیز نصاب له مسلکي همکارانو څخه، چې د دې کتاب په لیکلو او چمتو کولو کې یې نه ستړې کېدونکې هلې ځلې کړې دي، مننه کوم، او د لوی خدای ﷻ له دربار څخه دوی ته په دې سپیڅلې او انسان جوړوونکې هڅې کې بریا غواړم.

د معیاري او پرمختللي ښوونیز نظام او د داسې ودان افغانستان په هیله چې وګړي یې خپلواک، پوه او سوکاله وي.

د پوهنې وزیر

دکتور محمد میرویس بلخي

# فهرست




| شمېره | سرليکونه | مخ |
|---|---|---|
| لومړی لوست | مناجات | ۱ |
| دو يم لوست | سيرت النبيﷺ | ۵ |
| دريم لوست | د سولې ارزښت | ۱۱ |
| څلورم لوست | ځوانان او نوی نسل | ۱۵ |
| پنځم لوست | تشبيه (د بيان علم) | ۱۹ |
| شپږم لوست | پېغله ملالۍ | ۲۷ |
| اووم لوست | ډرامه څه ته وايي؟ | ۳۳ |

| شمیر | سرلیکونه | مخ |
| --- | --- | --- |
| اتم لوست | بایزید روښان | ٤١ |
| نهم لوست | په افغانستان کې د مطبوعاتو لنډ بهیر | ٤٩ |
| لسم لوست | ترکیب او له جملې سره د هغه توپیر | ٥٧ |
| یوولسم لوست | پښتو قصیده ((شیخ اسعد سوري)) | ٦٣ |
| دولسم لوست | چاپېریال ساتنه | ٧١ |
| دیار لسم لوست | د پښتو ادبیاتو دویمه تاریخي دوره | ٧٥ |
| څوار لسم لوست | په ټولنیز ژوند کې د ښځو ونډه | ٩١ |
| پنځلسم لوست | ژمنه: یوه روزنیزه کیسه | ٩٧ |
| شپاړسم لوست | د پښتو لیکنښو سمه کارونه | ١٠٣ |
| اووه لسم لوست | قیام الدین خادم | ١١١ |
| اتلسم لوست | پښتو ادبي سبکونه | ١١٩ |
| نولسم لوست | لور ته د چارلي چاپلین لیک | ١٢٥ |
| شلم لوست | نشه یي توکي (هیروین) | ١٣١ |
| یو ویشتم لوست | درواغجنه ونه | ١٣٧ |
| دوه ویشتم لوست | ارزاني خویشکی | ١٤٥ |
| درویشتم لوست | د معلولیت عوامل | ١٥٣ |
| څلور ویشتم لوست | مراد علي صاحبزاده (رح) | ١٥٩ |
| پنځه ویشتم لوست | په پښتو ادب کې د مېرمنو ونډه | ١٦٧ |
| شپږ ویشتم لوست | یوهان ولفگاگ فون گویته | ١٧٧ |
| اووه ویشتم لوست | د بشري حقونو تاریخچه | ١٨٥ |
| اته ویشتم لوست | ادبي معاصر نثر | ١٩١ |
| | وییپانگه | ٢٠١ |
| | اخځلیکونه | ٢١١ |



# مُناجات



په مخکنيو ټولګيو کې مو د کتاب پیل په شعري ژبه د خدای ﷻ په حمد اوستاینه کاوه. په دې ټولګي کې غواړو دا کتاب خدای ﷻ ته پر مناجاتو پیل کړو.

مُناجات د میم په پېښ لوستل کېږي. له خدای ﷻ څخه، د هغه له ستاینې او شکر سره یوځای، د یوه حاجت د سرته رسېدو او د اړتیاوو د پوره کولو غوښتنه ده. په دې معنا چې له خدای ﷻ سره راز او نیاز، پټې او ورو خبرې کول له مُناجات څخه عبارت دي.

مُناجات په اسلام کې خپل ځانګړی ځای او اوږده مخينه لري. پر خدای جل جلاله مينو صوفيانو او فقيرانو له خپل خدای سره په ډېر عجز او نياز خبرې کړي او له هغه ذات څخه يې د خپلو حاجتونو د پوره کېدو غوښتنې کړي دي. په دې هکله زياتې بېلګې شته. د بيتې نيکه مُناجات د هغې غوره بېلګه ده. بيتې نيکه به ويل:

((لويه خدايه، لويه خدايه!

ستا په مينه په هر ځايه،

غر ولاړ دی درناوی کې،

توله ژوي په زاری کې،

دلته دي د غرو لمنې،

زمونږ کيږدی دي پکې پلنې،

دا وګړي ډېر کړې خدايه!

لويه خدايه، لويه خدايه!...))

کله چې د مُناجات کلمه واورئ، څه شی در په زړه کېږي؟

لاندې متن د مُناجات يوه بېلګه ده:

الهي، زه څه نه لرم چې تاته يې وړاندې کړم، لاسونه مې تش او سترګې مې تیتې دي. د ګناهونو پيټی مې پر اوږو لا پسې درنديږي. ته په خپل فضل اوکرم زما لاس ونيسه او له دې ډاروونکي او خطرناک ګړنګه مې راوباسه. سترګې مې پر خپل نور روښانه کړه. په زړه کې مې د عقل ډېوه بله کړه. د خلاصون او فلاح لار راوښيه. تاته د منلو او مقبولو کسانو د لارې لاروی مې کړه، له ځانه مې پردی او خپل ځانته مې نژدې کړه.

الهي، کومه ژبه به ستا ثنا ته ورسېدای شي؟ کوم عقل به ستا صفت وکړای شي؟ کوم شکر به ستا له احسان سره برابري وکړای شي؟ کوم بنده به ستا له شان سره لايق ستا عبادت وکړای شي؟

ربه، ای له ما څخه ماته نژدې او له ما څخه پر ماباندې مهربانه! ... ما وبخښه، له ماسره له خپل کرم نه کار واخله، زما عمل ته مه ګوره، زما تر وسې راباندې بار واچوه، هغسې نه چې زما ترمخه دې پر نورو اچولی وو.(*) زما له شان سره برابره معامله راسره وکړه، زما کړه پرما تاوان او ستا کرم پر ما احسان!

الهي! ته زموږ حال وينې، زموږ بې وسي هم وينې. بې له تا چاته مخ واړوو؟ بې له تا چاته فریاد وکړو او له چا مرسته وغواړو؟ ته مو عرض واخلې او ته مو حال سم کړې!

الهي! موږ ګنهکار یو، موږ شرمسار یو، چاته ورشو؟ له هر باطله بېزار یو. تاته ژاړو، سر په اذکار یو، نه په یو ځلې، بل په وار، وار یو، په سل، سل ځلې، په زر، زر وار یو!

الهي! ته مو د رحمت پر اوبو پرېمنځه. الهي! ته مو د غفلت له خوبه راويښ کړه. الهي، که ويښ يو ته مو په سد کړه. الهي! که په سد يو، ته عقل راکړه، ته پوهه راکړه، ته مو هوښيار کړه!

الهي! که ګنهکار یو، ستا ګنهکار یو، ستا رحمت ته سترګې په لار یو، له نورو دروازو بېزار یو!

الهي! موږ ژوندي يو، خو په ژوند نه پوهېږو، ته مو په ژوند پوه کړه، ته مو په ژوند ښاد کړه، ته مو وجدان او ضمير ويښ کړه. ته مو د عقل سترګې بينا کړه. پر ښو او بدو مو ته آګاه کړه!

الهي ستا دربار ته بيا راغلم، بيا راځم او بيا به راځم، خو لاسونه مې تش دي، په تشو لاسونو راځم. ته مې تش لاسونه بېرته مه لېږه!

د متن لنډيز:
مُناجات د خدای ﷻ ياد او له هغه ذات سره خبرې کول دي. له هغه سره خپل راز شريکول دي. له هغه لوی ذات څخه د خپلو اړتياوو د پوره کولو غوښتل دي. هغه ته خپله بېوسي ښکاره کول دي. هغه ته دا ويل دي، چې: ((لاحول و لا قوة الا بالله)).



## څرګندونې

* د بقرې د سورت وروستیو آیتونو: ((لاتَحْمِلْ عَلینا اِصْراًکما حَمَلْتَهُ...)) ته اشاره ده.

** لاحول و لا قوة الا بالله، د الله ﷻ (له مرستې پرته) د (ښو) د کولو او د (بدو) د نه کولو هېڅ وس نه لرم. یعنې د الله ﷻ له مرستې پرته له ګناه څخه د مخ ګرځولو او د نیکو کارونو د سرته رسولو وسه نه لرم.



## فعالیتونه

۱ـ دوه تنه زده کوونکي دې په وار سره د ټولګي په وړاندې راشي او د مُناجات په اړه دې څرګندونې وکړي.

۲ـ زده کوونکي دې په څو ډلو ووېشل شي. هره ډله دې په خپلو منځونو کې په پورته یوه مُناجات خبرې وکړي، معنا دې څرګنده او د هغو یو تن استازی دې مهم ټکي ولیکي او په ټولګي کې دې یې ولولي.

۳ـ درې تنه زده کوونکي دې د ښوونکي په لارښوونه پورته مُناجات په خوږه ژبه د نورو په وړاندې دیکلمه کړي.

٤ـ پنځه تنه زده کوونکي دې د ټولګي مخې ته راشي او ودې وایي چې د ژمي رخصتي یې څنګه تېره کړې ده.

۵ـ څلور تنه نور زده کوونکي دې د روان نوي تعلیمي کال په اړه پر خپلو پلانونو وغږېږي.



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې هڅه وکړي، د پورته مُناجات په څېر څو کرښې مُناجات ولیکي او په بله ورځ دې یې په ټولګي کې ولولي.



# د اسلام د ستر پیغمبر ﷺ سیرت

د اسلام د ستر پیغمبر حضرت محمدﷺ سیرت د راتلونکو نسلونو روزنې ته خورا مهم دی، مسلمانان د خپل استمرار، دعوت او بقا عوامل په همدې اخلاقو کېويني. د پيغمبر ﷺ اخلاقو ته ډېر ژور پام هغه راز رابرسېره کوي چې د تاريخ د بدلون لامل شو. كه څوك د حضرت پيغمبرﷺ سيرت او اخلاقو ته پام وكړي، نو د هغه په دې وينا به پوه شي: ((زه په خپلو لاسونو داسې يو امت روزم چې راتلونكى تاريخ په لاس كې واخلي.)) حضرت پیغمبرﷺ د ناخوالو په وړاندې د زغم او حوصلې، پر حق ټينګار او د نړۍ له لوړو او ژورو سره د مخامخ كېدو پر مهال په استقامت ډاډ او اطمينان كې سارى نه درلود. په زړه سوي، نرمۍ او بزرګوارۍ كې يې په دې نړۍ كې له موجودو مفاهيمو لوړ ځاى درلود. هغه د دې لپاره پيدا شوى و چې پر پېښو او حوادثو بريمن شي؛ انساني نړۍ ته سمون وركړي؛ انسانانو ته د يوه او واحد خداى جل جلاله د عبادت بلنه وركړي او خلك سمې لارې ته راوبولي. له دې امله حضرت محمدﷺ تل د بشر په تاريخ كې د الهام منبع او سرچينه ده.

حضرت محمد مصطفیﷺ وروستی پیغمبر دی. هغه د نیکو او غوره اخلاقو یوه نمونه وه. د هغه همدا غوره او نیک صفتونه وو چې د اسلام سپېڅلی دین د نړۍ په گوټ گوټ کې خپور شو. نن د نړۍ په بېلا بېلو هېوادونو کې له یو نیم ملیارد څخه زیات مسلمانان ژوند کوي او ورځ په ورځ دا لړۍ لا پسې پراخېږي. د اسلام ستر پیغمبر د اخلاقو او غوره صفتونو داسې یوه ممتازه څېره وه چې په لیک کې نه ځایېږي. د خلکو زړونه د هغه له درناوۍ ډک دي او ساتل یې د ایمان جزء یا برخه بولي؛ ځکه یې د سر او مال په بیه ساتي.

حضرت محمد مصطفیﷺ یو پیاوړی، نیک خویه، زړه سواند او مهربان شخصیت و. حضرت باري تعالی د اسلام ستر پیغمبر ته فرمایلي دي: ((وَ اِنَّکَ لَعَلٰی خُلُقٍ عظیم.)) په رښتیا چې ته د عظیمو او لوړو اخلاقو خاوند یې. حضرت محمدﷺ فرمایلي دي: ((بعثت لاتمم مکارم الاخلاق))، یعنې زه د دې لپاره گومارل شوی یم چې نېک او غوره اخلاق د بشپړتیا پولې ته ورسوم.

په سیرة النبي کې د اسلام د ستر پیغمبر د صورت او سیرت په اړه راغلي دي. ((نوراني څېره او غوره اخلاق یې درلودل. زړه راکښونکی او ښکلی سړی و. سترگې یې ډېرې تورې، باڼه یې لوړ، وروځې یې کږې او نښتې وې. د چوپتیا په وخت کې به یې وقار څرگند و. که خبرې به یې کولې، نو د سترتوب نښې به پکې څرگندېدې. خوږ ژبی و، ډېرې خبرې یې نه کولې. ونه یې نه ډېره لوړه او نه ډېره ټیټه وه. ملگرو یې ډېر زیات درناوی کاوه. د خبرو پر مهال به ورته ټولو غوږ نیولی وو او د امر پر مهال به یې یو له بل څخه مخکې کېدل. د هغه د امر په سرته رسولو کې به له ځانه تېرېدل. خوا به یې تل له یارانو ډکه وه، نه به یې تندی تریو و او نه به یې د چا عیب لټولو. ښښونکی، له زغمه ډک او رښتیا ویونکی و. د وعدې په سرته رسولو کې تر ټولو مخکښ و. په لومړۍ لیدنه کې به یې هر چاته هیبت او پرتم څرگندیده. چا چې به ورسره خبرې کولې، نو په مینه به یې ورسره پیدا کېده... .))

رسول اکرمﷺ ډېره فصیحه او بلیغه ژبه درلوده. ډېرې څرګندې، معنا لرونکې او بې تکلفه خبرې یې کولې. د عربي ژبې په ټولو ګرودونو پوهېده او له هر چاسره به یې د هغه په ګړدود خبرې کولې. په کلمو کې یې رڼایي نغښتې وه. الهي وحې هم په دې کار کې د هغه مرستندویه وه. زغم او حوصله مندي، عفو او د ستونزو او کړاوونو په وړاندې صبر، هغه صفتونه وو چې خدایﷻ هغه ته ورکړي وو؛ ځکه سره له دې چې حضرت رسول اکرمﷺ ډېر کړاوونه ولیدل، خو بې صبره نشو او د ناپوهانو او جاهلانو د افراط په وړاندې یې له حلم او نرمۍ پرته هېڅکله بل کار و نه کړ.

هر وخت به چې د اسلام د ستر پیغمبر مخې ته دوه کارونه پراته وو، نو ډېر اسانه به یې ترې غوره کاوه، په دې شرط چې ګناه به پکې نغښتې نه وه. هېڅکله یې له چا څخه غچ نه اخیست، مګر داچې شریعت به تر پښو لاندې شوی و. د خدای رسول له قهر او غوسې ډېر لیرې و. حضرت محمدﷺ په ورکړه او سخا کې داسې مقام درلود چې د بل چا وسه ورته نه رسېده. وایي له رسول اکرمﷺ څخه داسې شی نه و غوښتل شوی چې هغه یې په وړاندې ((نه)) ویلي وي. ګران پیغمبر تر ټولو زړور و او تل به په سختو شرایطو کې حاضرېده.

هغسې چې دوستانو او دښمنانو پرې اعتراف کړی دی، حضرت محمدﷺ بخښونکی، پاک لمنی، رښتینی او امین شخصیت و. له پیغمبرۍ د مخه د امین لقب ورکړ شوی و. له اسلام د مخه د جاهلیت په دورې کې د عدل لپاره له هغه څخه مرسته غوښتل کېده. حضرت محمدﷺ تر ټولو متواضع او له لویۍ لیرې و. هغه نه غوښتل د پاچاهانو په څېر یې مخې ته خلك پورته شي. له خپلو اصحابو سره د یوه عادي شخص په توګه کښیناسته. خپل شخصي کارونه به یې په خپله کول؛ جامې به یې په لاس ګنډلې او پیوندولې؛ خپلې میږې یې لوشلې؛ په خپلو وعدو ولاړ و او تل یې له زړه سوي کار اخیست. په معاشرت، ادب او نیکو اخلاقو کې تر ټولو د مخه و. پیغمبر اکرمﷺ بده ژبه نه کاروله، پر چا یې لعنت نه

وایه. په بازار او لارو کې یې په لوړ غږ خبرې نه کولې. بدۍ ته یې په بدۍ ځواب نه ورکاوه، بلکې په عفوې او بخښنې به یې ځوابوله. هېڅکله یې ځوک نه پرېښودل چې د درناوي په نامه یې شاته روان شي. په خوړو او جامو کې یې له خپلو خادمانو او لاس لاندې کسانو سره توپیر نه درلود. له اړتیا پرته یې خبرې نه کولې. د هرقوم مشر یې د هغه قوم مشر ګاڼه او د هماغه قوم پر مشرۍ یې ګومارلو. د نیکۍ قدر یې کاوه او پر هغې یې ټینګار کاوه. له بدۍ یې کرکه کوله. کار یې په ډېر اعتدال سر ته رساوه، اختلاف او مجادله یې نه کوله. نژدې یاران یې تر ټولو غوره خلک وو. هغه ته تر ټولو ګران هغه ځوک و چې تر نورو زیات له خدایه وېرېده. د هغه چا منزلت یې لوړ ګاڼه چې تر نورو یې له خلکو سره زیاته مرسته، همکاري او غمخوري کوله. په مجلسونو کې یې د ځان لپاره کوم ځانګړی ځای نه ټاکه. د خلکو په منځ کې به په یوه خالي ځای کې کېنېناسته. ټولو ناستو خلکو ته به یې یو ډول پام کاوه چې په غونډې کې ناست کسان ونه وایي تر هغه ورته بل سړی غوره دی. پیغمبرﷺ په غونډو او مجلسونو کې تر ټولو باوقاره شخصیت و. لاس او پښې یې هرې خوا ته نه غځولې. خندا یې یوازې یوه موسکا وه. خبرې یې له اندازې لرې او ډېرې نه وې.

حضرت پیغمبرﷺ په ډېرو بې نظیرو صفتونو او کمالونو ښکلی شوی و، خدای ښه ادب ورکړی او خطاب یې ورته کړی و: ((و انک لعلی خلق عظیم))

دې اخلاقي ځانګړتیاوو د خلکو زړونه حضرت پیغمبرﷺ ته داسې نژدې کړل؛ داسې د خلکو په زړونو کې محبوب او داسې یو لارښود ترې جوړ شو چې د قوم سرکشي او غرور یې په نرمۍ بدل او ډلې، ډلې د خدای په دین مشرف شول او نن پېړۍ پېړۍ وروسته د هغه مینه، محبت او درناوی د هر مسلمان په زړه کې ځپې وهي. (صلی الله علیه وسلم)

د متن لنډیز:

نبوي اخلاق په حقیقت کې د پیغمبر اکرمﷺ له رسالت څخه عبارت دي چې هغه یې د وینا، کړنې او تګلارو له لارې بشري ټولنې ته وړاندې او په پایله کې یې د ژوند معیارونه بدل کړل. نیکي او ښه چلند یې د بدی او ناوړه چلند پر ځای دود کړ. خلک یې له ظلمت او تیارې څخه رڼایی ته رهنمایي کړل؛ بنده ګان یې د بنده د بنده ګی پرځای د واحد خدای بنده ګی ته راوبلل. د تاریخ تګلوری یې برابر او سمې لارې ته سیخ کړ او په بشري نړۍ کې یې د ژوند لاره بدله کړه؛ خو په دې ټکي پوهیدل له دې پرته شوني نه دي، تر هغه چې د پیغمبر اکرمﷺ له رسالت څخه د د مخه وخت حالتونه د هغه جناب له رسالت څخه له راوروسته حالت او بدلونونو سره پرتله نشي.

## فعالیتونه

۱ـ څو تنه زده کوونکي دې په وار سره د ټولګي مخې ته راشي او د حضرت محمدﷺ د غوره اخلاقو په اړه دې دوه، دوه دقیقې وینا وکړي.

۲ـ زده کوونکي دې په پنځو ډلو وویشل شي. هره ډله دې د اسلام پر دین د خلکو د مشرف کېدو د لامل په توګه د حضرت رسول اکرمﷺ د اخلاقو په ارزښت غور وکړي، خپلې موندنې دې تنظیم کړي. د هرې ډلې استازی دې هغه د نورو زده کوونکو په وړاندې ولولي او ټول زده کوونکي دې پرې آزاد بحث وکړي.

۳ـ درې تنه زده کوونکي دې د ټولګي مخې ته راشي او لاندې کلمې دې د متن په مناسبو ځایونو کې وکاروي او نورو ته دې واوروي.

ګناه، ستر، غوره، زړور، پراته، غچ ، آسان، وسه ، تر پښو لاندې ،ګران، نغښتې، ورکړه، غوسې، حاضرېده

هرکله به چې د اسلام د.... پیغمبر مخې ته دوه کارونه ... وو، نو ډېر .... به يې ترې ... کاوه، په دې شرط چې ... به په کې .... نه وه. هېڅکله يې له چا څخه ... نه اخيست، مگر داچې شريعت به ...... شوی و. د خدای رسول له قهر او.... ډېر ليرې و. حضرت محمدﷺ په ورکړه او سخاکې داسې مقام درلود چې د بل چا ... ورته نه رسېده. ... پیغمبر تر ټولو... و او تل به سختو شرايطو کې .....

٤_ د محمدﷺ وينا او عمل ته څه وايي؟ دوه تنه زده کوونکي دې پرې خبرې وکړي.

٥_ که د زده کوونکو په ډله کې د کوم يو نعت ياد وي، د ټولگي په وړاندې دې په خواږه آواز ولولي.

٦_ درې تنه زده کوونکي دې د ټولگي مخې ته راشي. يو تن دې په متن کې پنځه گونې ياگانې ولټوي او د هغوی اړوندې کلمې دې نورو ټولگيوالو ته ولولي. بل زده کوونکی دې په متن کې ساده بيانيه جملې او دريم تن دې مرکبې جملې پيدا او نورو زده کوونکو ته دې په گوته کړي.




زده کوونکي دې په کورونو کې د رسول اکرمﷺ د اخلاقو په اړه لس کرښې مقاله وليکي او په بله ورځ دې ټولگي ته راوړي.





# د سولې ارزښت

هغسې چې ژوند د کار نوم دی، سوله د ژوند نوم دی. د ژوند لپاره کار اړین دی. که کار نه وي، سړی که ژوندی هم وي، په مړو شمار دی. ژوند او کار یو د بل لازم او ملزوم دي. چېرته چې ژوند وي، هلته کار وي؛ چېرته چې کار وي، هلته ژوند وي. بې له کاره ژوند معنا نه لري. همداسې سوله درواخلئ. سوله د ژوند نوم او ژوند د سولې نوم دی. که سوله نه وي، ژوند تریخ دی. که سوله نه وي ژوند، ژوند ته نه پاتې کېږي. که سوله نه وي، ژوند به څه ارزښت ولري؟ د سولې ارزښت هغه مهال ډېر څرګند دی چې یو ولس په جګړې کې ښکېل وي. د هوسایې په ارزښت هغه مهال انسان پوهېږي چې په کړاو اخته شي.

د یوه سوله ییز ژوند ارزښت په څه شي کې پروت دی؟

سوله ډېر پراخ مفهوم لري. سوله د انساني ژوند بنسټ جوړوي. سوله ژوند ته رنګ او خوند ورکوي، خو دا رنګ او خوند هغه مهال سړي ته څرګندېږي چې سوله نه وي. سوله له دوو تنو څخه نیولې، بیا د کورنۍ د غړو، قومونو او ولسونو او په پای کې د یوه هېواد دننه د استوګنو خلکو تر منځ د هغوی په ورځني ژوند اغیز کوي. که دوه تنه په خپل منځ کې پر یوه شي خوابدي شي، نو اړیکي یې شلېږي؛ که په یوې کورنۍ کې د پلار او مور، د مور او پلار او اولادونو یا د اولادونو په خپلمنځي اړیکو کې تاوتریخوالی راشي، ژوند یې تریخېږي.
که یو ولس په خپل منځ کې یو تر بله په جنګ جګړو بوخت وي، یا پر یوه خپلواک هېواد باندې پردي، برید او یرغل وکړي، نو عادي او ورځنۍ اړیکي یې شلېږي او ژوند یې له ستونزو سره مخامخ کېږي.
په پورته ټولو حالاتو کې د سولې نشتوالی ورځنی ژوند له خنډونو سره مخامخ کوي او د پرمختګ او سوکالۍ مخه یې نیسي. د جګړې په شرایطو کې د ژوند څرخ په ټپه درېږي. خلک وژل کېږي؛ ټپي کېږي؛ نیول کېږي؛ اسیران کېږي؛ بېکوره کېږي؛ مهاجرت او کډوالۍ ته اړایستل کېږي؛ کورونه او ښارونه په کنډوالو اوړي؛ کرنیزې ځمکې شاړېږي؛ د اوبه خور بندونه ویجاړېږي؛ ښوونځي تړل کېږي؛ پلرونه د زامنو جنازې خاورو ته سپاري او زاړه په ځوانانو نولېږي؛ روغتونونه ناروغانو اوټپیانو ته نشي رسېدای. همداسې بې شمېره نورې ناخوالې درواخلئ.
وګورئ، په جګړې کې ښکیلېدل او له سولې لاس په سر کېدل انسان له خومره ستر ناتار او کړاو سره مخامخ کوي. کله چې خولې وتړل شي، عقل او پوهه مغلوبه شي او پر ځای یې یو او بل د ټوپک د شپېلیو په خولو خبرې پیل کړي، نو ناخوالې زېږي او رڼا پر تورتم بدلېږي.
داسې کوم کار او مشکل نشته چې په خبرو حل نشي، خو که د خبرو د اورېدو لپاره غوږونه کاڼه نشي او ناپوهي پر پوهې برلاسې نشي، ځاني ګټې پر ملي ګټو لوړې ونه ګڼل شي، که د ځان تر څنګ نور هم ومنل شي، که زغم او ځان تېرېدنې ته د یوه بنیادي اصل په سترګه

وکتل شي، نو داسې کومه ستونزه او ربړه نه پاتې کېږي چې حل او هواره نشي.

سخ پر هغه چا، پر هغه قوم، ولس او پر هغه پرګنو چې ځان تر نورو لوړ نه ګڼي، د هر چا پوله او برید پېژني؛ سوله پر تاوتریخوالي، جنګ او جګړې غوره بولي؛ ټولې ربړې او ستونزې د جرګو پر ټغر هواروي.

**د متن لنډیز:**

سوله انساني اړتیا ده. سوله ژوند ته وایي. که سوله نه وي، ژوند تریخ وي. جګړه د شخړو او لانجو د حل لاره نه ده. شخړې په خبرو او جرګو هوارېږي. افغانان له جرګو سره لرغونې بلدتیا لري. خپل ټول تاوتریخوالی په خبرو لېرې کوي. پوهان او هوښیاران د ټوپک د شپېلیو پر ځای په خولو خبرې کوي. د لاس غوټه په لاس پرانیزي. خپلو اولادونو او ماشومانو ته نیک او خوږ میراث پرېږدي. خپل هېواد او خپله خاوره ورته ګرانه وي. خپلو ځانونو او خپلو هېوادوالو ته د یو هوسا او سوکاله ژوند په لټه کې وي. هڅه کوي، خپل هېواد د سیمې او نړۍ د هېوادونو په لیکه کې ودروي. دا ټول هغه مهال شوني دي چې خپلمنځي دښمنۍ او تربګنۍ شاته پرېښودل شي او ټول په دې وینا عمل وکړي چې:

که زه وایم چې زه یم او ته وایې چې زه یم؛نه به ته یې نه به زه یم.

خو که زه وایم چې ته یې او ته وایې چې ته یې؛ هم به ته یې هم به زه یم.

## فعالیتونه

۱ــ پنځه تنه زده کوونکي دې په وار سره د ټولګي مخې ته راشي او دوه، دوه دقیقې دې د سولې په اړه خبرې وکړي.

۲ ــ زده کوونکي دې پر پنځو ډلو ووېشل شي. هره ډله دې پر لاندې ټکو خبرې اترې وکړي:

- سوله څنګه ټینګیږي؟
- د سولې په ټینګولو کې کومو اصولو ته باید پام وشي؟
- د سولې په اړه د خبرو اترو اساسي ټکي کوم دي؟

هره ډله دې په لنډ ډول خپل نظر ولیکي او د هرې ډلې یو تن استازی دې په وار سره د ټولګي پر وړاندې خبرې وکړي. په پای کې دې پوښتنو ته ځوابونه ووایي او له خپلو نظریو څخه دې دفاع وکړي.

۳ـ هر زده کوونکی دې په ځانګړي ډول له لاندې کلمو څخه یو متن جوړ کړي او د نورو په وړاندې دې ولولي:

سوله، انساني، ژوند، بنسټ، سوله، رنګ او خوند، خوابدي، اړیکې، شلیږي، ژوند، ترخیږي.

٤ـ دوه تنه زده کوونکي دې د نورو په استازیتوب د ټولګي مخې ته راشي. یو له بل څخه دې د سولې په اړه پوښتنې وکړي او ځوابونه دې واوري. نور ټولګیوال دې ورته غوږ شي. په پای کې دې د پوښتنو او ځوابونو په اړه خپل نظر څرګند کړي.

٥ـ لاندې اصطلاح ګانې او عبارتونه څه معنا لري؟ خبرې پرې وکړئ او که داسې نورې اصطلاح ګانې او عبارتونه درته یاد وي، ویې وایئ:

د لاس غوټه په خولې پرانیستل؛ د ټوپک په شپېلۍ خبرې کول؛ د ژوند څرخ په ټپه درېدل، لاس په سر کېدل.




زده کوونکي دې په هېواد کې د سولې او امنیت د ټینګولو په اړه خپل وړاندیزونه او نظریې ولیکي او بله ورځ دې په ټولګي کې د نورو په وړاندې ولولي.

جګړه د هر ولس تدریجي ځان وژنه ده.

# ټولنه او نوی نسل






هره ټولنه له ماشومانو، پېغلو، ځوانانو او زړو ښځه جوړه شوې ده. هر يو يې پر خپل، خپل ځای ډېر ارزښت لري. ماشومان د سبا ورځې مېندې او پلرونه دي. هغوی سمې او سالمې روزنې ته اړتيا لري. هغوی د خامې اوسپنې په څېر دي. هره بڼه چې مو زړه وي، هغه ترې جوړولای شئ. پېغلې او ځوانان د عقل او متو زور لري. هغوی د يوې ټولنې د ملا تير جوړوي. که سم وروزل شي، د ټولنې ښه معماران به وي. که پام ورته نه وي شوی، نو کېدای شي د ټولنې بنسټونه ونړوي او پر بله يې واړوي. مشرانو او زړو خلکو تر شا ډېرې تجربې او د ژوند خوږې او ترخې پرېښې دي. هغوی د درناوي وړ دي.

پېغلې او ځوانان څنګه د يوې ټولنې بنسټ ټينګولای شي؟

پېغلې او ځوانان د يوې ټولنې د ملا تير جوړوي. رګونه په بدن کې ستر ارزښت لري. پاکه وينه له زړه څخه د بدن ټولو ځايونو ته رسوي او په بدل کې يې کاربېدلې وينه د تصفيې لپاره زړه ته لېږدوي.

پېغلې او ځوانان همداسې درواخلئ. هغوی د ټولنې تر ټولو ستر او ارزښتمن پوړکی دی. څومره چې هغوی په ښوونه او روزنه ښه سمبال وي؛ څومره چې يې روزنه او تربيه رغنده او سالمه وي؛ څومره چې د ټولنې د خواخوږۍ احساس ورسره وي؛ په هماغه اندازه به د ټولنې لپاره د هغوی ارزښت او اهميت زيات وي. د ټولنې لوړوالی او ځوړوالی د پېغلو او ځوانانو په سمې روزنې، نيکو اخلاقو او لوړ احساس پورې اړوند دی. په يوې ټولنې کې د ناخوالو په وړاندې بې توپيره پاتې کېدل د پېغلو او ځوانانو ارزښت راټيټوي.

پېغلې او ځوانان په يوې ټولنه کې ستر رسالت پر غاړه لري. هغوی دنده لري ټولنه سم لوري ته رهبري کړي. په ټولنه کې زړو ناسمو دودونو او رواجونو ته د پای ټکی کېږدي. د بېلګې په توګه وګورئ، افغاني ټولنه له يو لړ ناوړو دودونو سره لاس او ګرېوان ده؛ پېغلې په بدو کې ورکول کېږي؛ پېغلې اوځوانان له خپلې خوښې پرته يو بل ته وديږي؛ د غم او ښادۍ په مراسمو کې ملاماتوونکي دودونه او رواجونه سرته رسيږي او همداسې نور نامنلي او ناګټلي دودونه او رواجونه. که چېرته پېغلې او ځوانان د خپلو مشرانو په مرسته وغواړي دا ناوړه دودونه واړوي، کولای شي داکار وکړي. له خپلو مشرانو سره کښينې او له هغوی سره د دې دودونو د منفي او ناوړو اړخونو په اړه خبرې وکړي او هغوی ته روښانه کړي چې نننۍ ټولنه هاغه د پېړيو، پېړيو پخوانۍ ټولنه نه ده، بلکې نننۍ ټولنه نوې غوښتنې او نوی ژوند غواړي.

اوس نړۍ د يو کلي بڼه غوره کړې ده. د يوې ټولنې دود او فرهنګ ډېر ژر په يوې لارې نه په يوې لارې پر بلې ټولنې اغېز کوي. د نشه يي توکو په کارونې کې يو شمېر ځوانان بې توپيره پاتې شوي دي. په داسې حال کې چې دوی کولای شي په کلکه د هغې مخه ونيسي اوېري نړدي چې پېغلې او ځوانان په هغې روږدي شي.

د متن لنډیز:

د یوې ټولنې په جوړښت کې پېغلې او ځوانان تر ټولو ډېر او مهمه اغېزه لري. په دې معنا، همدا پېغلې اوځوانان دي چې د ټولنې جوړښت ساتي او ټینګوي يې. ځوانان او پېغلې باید ډېر سم وروزل شي، د هر شي ارزښت او اهمیت ورته په ګوته شي او خپل مسوولیتونه او دندې وپېژني، ترڅو په راتلونکي کې دوی هم خپل مسوولیتونه په سمه توګه سرته ورسوي. پر دې ټکي پوهېدل اړین دي چې د بامسؤولیته ځوان نسل د سالمې روزنې لپاره لا له هماغه کوچنيوالي او ماشومتوب څخه د هغوی سمې او رغندې روزنې ته بشپړ پام وشي او په مسوولیت وروزل شي، که نه نو خدای مه کړه، بیا به وخت تېر وي او د لاسونو موښل به د ټولنې له شلېدو پرته بل څه لاس ته را نه وړي.

## فعالیتونه

د ټولګي په وړاندې پرې خبرې وکړي. نور زده کوونکي کولای شي، پر موضوع ازاد بحث وکړي.

۲ــ زده کوونکي دې پر مناسبو ډلو ووېشل شي. هره ډله دې له ځوان نسل څخه خپلې غوښتنې او د هغو ځوابونه ولیکي او د هغوی یو تن استازی دې یې د نورو په وړاندې ولولي.

۳ــ د نښه يي توکو د کرکیلې او پر نشو باندې د اخته کېدو د مخنیوي لارې کومې دي؟

ځلور تنه زده کوونکي دې په دې اړه د نورو په وړاندې خبرې وکړي.

٤_ کورنۍ تربیه او روزنه د ځوانانو پر ژوند څه اغېز لري؟ آیا یوازې کورنۍ د ځوانانو پر روزنې اغېز لري، که نور لاملونه هم شته؟ یو تن زده کوونکی دې د پورته پوښتنې په اړوند له نورو ټولګیوالو سره خبرې وکړي او پایله دې پر تختې ولیکي.




ځوانانو ته څه کول په کار دي؟ هغوی څنګه کولای شي خپلې ټولنې ته ګټور او اغېزمن واقع شي؟ د ځوان نسل رول د یوې ټولنې په ودانۍ او پرمختګ کې څه دی؟ زده کوونکي دې په دې هکله لس کرښې مقاله ولیکي او ټولګي ته دې یې راوړي. هڅه دې وکړې چې لیکنه یې ادبي رنګ ولري.

زده کوونکي دې لاندې ځلوریزه ولولي او خوند دې ترې واخلي:

چې یې عرش او کرسی لاندې تر قدم دي
بالاتر دی هسې شان قدم د زړه
د خلیل تر کعبې دا کعبه ده لویه
که آباد کا څوک ویران حرم د زړه

عبدالرحمٰن بابا

زغم لویه زړورتیا ده.

# تشبیه

عربي خورا بډایه ژبه ده، شعر او شاعري پکې اوج ته رسېدلې. شعرونه یې خپل اوزان لري. همدا شان د بدیع او بیان په ګاڼو سینګار شوې ده. لومړنی شخص چې په اسلامي دوره کې یې د بیان د علومو یا ادبي فنونو تتبع او څېړنه وکړه، ابو عبیده مثنی (۲۱۱ هـ .کال مړ) و. د بیان فن عبدالله بن معتز (۲۹۶ هـ. مړ) وضع کړ او بیا ډېرو ادیبانو پر دې فن کار وکړ. په ګران هېواد کې د اسلام له راتګ سره سم د مذهبي ژبې په توګه د عربي ژبې نفوذ پر پښتو او دري ادبیاتو خپلې وزرې وغوړولې. زموږ ملي ادبیاتو ځان په دې بهیر کې ورګډ کړ. د هغوی لار یې خپله کړه او د عربي ژبې پر اوزانو برابر د نظم او شعر ویل پیل شول.

په ادبي فنونو کې معاني، بیان او بدیع شامل دي. په بیان کې له تشبیه، استعارې، کنایې او مجاز څخه بحث کېږي. د بدیع علم د وینا یا کلام لفظي او معنوي ارزښتونه یا لفظي او معنوي ادبي صنعتونه راپېژني او په معاني کې د وینا بیان او مطلب د ښې افادې لارو چارو ته پاملرنه کېږي او په بنسټیزه توګه له فصاحت او بلاغت څخه بحث کوي.

بیان څرګندولو ته وايي او په ادبي اصطلاح کې هغه پوهنه ده چې په مرسته یې یوه یا څو معناوې په داسې بېلا بېلو لارو ادا شي چې د څرګندتیا او ابهام له مخې ښکاره توپیر ولري.

تشبیه ورته والي ته وايي. دا ورته والی به یا په بڼه کې وي یا به په معنا کې وي؛ یعنې که دوه شیان یا دوه حالته څو ګډ صفتونه، وجهې او مشابهتونه سره ولري، تشبیه بلل کېږي. په ادب کې دا ورته والی په حقیقي معنا نه را اخیستل کېږي، بلکې یو شی له بل شي سره پرتله کېږي. د بېلګې په توګه: مخ له ګل سره تشبیه کول. ګل ښایسته وي، سور او سپین وې، تازه وي، نو مخ ته هم د داسې صفتونو ورکول هغه له ګل سره ورته کوي.دویم دا چې ښکلا او صفت له لومړي (مشبه) نه په دویم (مشبه به) کې زیات وي. که ووایو حمید د جمیل په څېر تکړه دی. نو دا مازې تشابه شوه، خو که ووایو ګلالۍ د ګل په څېر ښایسته ده. دلته ګلالۍ له ګل سره تشبیه شوې ده.

ادبپوهانو په واقعیت کې تشبیه د معنا د بیانولو ډېره لومړنۍ او اسانه لاره چاره بللې ده. څرنګه چې انسان د ډېرو کارونو او شیانو له ماهیت او حقیقت څخه خبر نه دی او هغه شیان نشي تعریفولای، نو له هغو شیانو سره چې ښه یې پېژني او ورسره آشنا دي، تشبیه کوي یې.

تشبیه پنځه رکنونه لري: مشبه، مشبه به، د تشبیه وجه، د تشبیه توري، د تشبیه غرض.

۱ - مشبه، هغه ته وايي چې له بل شي سره ورته یا تشبیه کېږي. لکه، د مخ ورته کول له ګل سره.

بېلګې:

هېڅ مې نه زده محبت که اور دی دا

په اور سوځم په رضا که زور دی دا

په دې بیت کې "محبت" مشبه، "اور" مشبه به، "که" د تشبیه توری دی.

لاندې بيت ته وګورئ:

چې ريبي مې بې صرفې د زړګي ولې
کرې وروځې دي د يار که لور دی دا

په پورته دويم نيم بيتي کې "وروځې" مشبه، "لور" مشبه به، "د وروځو او لور" ترمنځ "کوږوالی" وجه شبه ده.

۲ - مشبه به، هغه ته وايي چې د بل شي ورته والی او تشبيه يې ورسره کېږي، لکه مخ چې له ګل سره تشبيه شوی دی. وګورئ په لاندې بيت کې:

الهي د محبت سوز و ګداز را
په دا اور کې د سهي سمندر ساز را

په دې بيت کې "محبت" له "اور" سره تشبيه شوی دی. "محبت" مشبه او "اور" مشبه به دی.

۳ – د تشبيه وجه، هغه يو يا څو مشترک صفتونه چې د مشبه او مشبه به ترمنځ موجود وي، د تشبيه وجه يې بولي. لکه په دې لاندې بيت کې:

د بادام په څېر مې زړه سوری سوری شي
چې راپورته په غمزه سترګو بانه کړې

په پورته بيت کې "زړه" مشبه، "بادام" مشبه به، "په څېر" د تشبيه کلمه، "سوری سوری کېدل" يې د مشترک صفت يا تشبيه وجه ده. د تشبيه وجه ښايي په مشبه به کې تر مشبه زياته، قوي او څرګنده وي.

٤ - د تشبيه توري يا کلمې: هغه توري يا کلمې چې مشبه له مشبه به سره تړي، د تشبيه توري ورته وايي، لکه: په څېر، په شان، غوندې، هغسې، هسې، داسې، څنګه، لکه، په دود، په څېر، ...

آينې غوندې خوله پټه سوال جواب کړه
مناسب نه دی اشنا ته رسوا عرض

په پورته بیت کې "شاعر" مشبه "آینه" مشبه به، "غوندې" د تشبیه کلمه ده. یا:

چې د سپرلي گـــــلونـــه گـــورم     ماته د گل په شان جانان رایادوینه

په دې لنډۍ کې "جانان" مشبه "گل" مشبه به، "په شان" د تشبیه کلمه ده.

۵ - د تشبیه غرض: هغه مقصد اومطلب چې له تشبیه څخه اخیستل کېږي، د تشبیه غرض ورته وایي. هدف لپاره یو شی له بل شي سره تشبیه کېږي.

د تشبیه ډولونه

تشبیه د بېلابېلو خواوو او څرنگوالي په اعتبار زیات ډولونه لري. دلته یې دا لاندې ډولونه درپېژنو.

الف: د طرفینو د موقعیت له مخې په دوه ډوله ده.

اول: مفروقه تشبیه چې په یو بیت یا نیم بیتي کې د هرې مشبه ترڅنگه مشبه به راغلې وي، لکه:

لال دې شونډې، غاښ مرغلرې
خوله دې غونچه قند دې خبرې
کامگار گدای شه ستا په در کې
چېرې یـې نـه کـا رقیبان لرې

د پورته شعر لومړي نیم بیتي کې "شونډې" مشبه، "لال" مشبه به، غاښ" مشبه، "مرغلرې" مشبه به دی. په دویم نیم بیتي کې "خوله" مشبه، "غونچه"مشبه به، "خبرې" مشبه، "قند" مشبه به دی. څرنگه چې مشبه له هرې مشبه به سره نژدې واقع شوې ده، نو مفروقه یا جلا جلا تشبیه یې بولي.

اوښکې در، رنگ کهربا، زړه لکه لال
جنس مې ډېر ولې رونق د بازار نشته

په پورته بیت کې "اوښکې" له "مرغلرو"، "رنگ" له "کهربا" او "زړه" له"لال" سره تشبیه شوی دی.

خوله غونچه، سترګې نرګس، زلفې سنبل دي
خط ريحان دی څه ګـلـــزار په لاس راکــېوت

په دې بيت کې "خوله" له "غونچې"، "سترګې" له "نرګس"، "زلفې" له "سنبل" سره تشبيه شوي دي. د طرفينو د موقعيت له مخې مفروقه تشبيه بلل کېږي.

مخ دې څـــراغ سينه دې باغ دی          خدايه پتنګ شم که بورا وربانديې شمه
زلفې سنبل مخې دې ګلاب دی          زنه دې سيب د سمرقند در دې غاښونه

دويم: ملفوفه (نغاړلې يا په لفافه کې) تشبيه

دا هغه تشبيه ده چې په يوه مسره يا بيت کې مشبه او په بله مسره يا بيت کې يې مشبه به راغلي وي. لاندې بيت ته وګورئ:

تــورو زلـفـو تـه يـې ګــوره ښايسته دواړه رخساره
د جهان په باغ کې نشته سنبل هسې سمن هسې

په پورته بيت کې "زلفې" مشبه او "سنبل" مشبه به دی. "رخسار" مشبه، "سمن" مشبه به دی. ګورو چې دواړه مشبه په يو نيم بيتي او مشبه به په دويم نيم بيتي کې راغلي دي. يعنې مشبه به له مشبه سره نژدې نه ده راغلې. له دې امله يې ملفوفه (نغاړلې) تشبيه بولي.

نورې بېلګې:

دا څه زلفې، څه رخسار او څه ذقن دی
څه سنبل، څه ګلاب، څه نسترن دی

* * *

تـورې زلفې شنه خالونه سره رخسار
شنه توتيان دي سره ګلونه تور ښامار

د پورته بيت په لومړي نيم بيتي کې "زلفې"، "رخسار" او "ذقن" مشبه او په دويم نيم بيتي کې "سنبل"، "ګلاب" او "نسترن" مشبه به دي.

د دویم بیت په لومړي نیم بیتي کې "زلفې"، "خالونه" او "رخسار" مشبه او په دویم نیم بیتي کې "توتیان"، "ګلونه" او "ښامار" مشبه به دي.

څرنګه چې مشبه او مشبه به سره نژدې نه دي راغلي، نو ملفوفه تشبیه ورته وايي.

ب: د ابتذال او ندرت له مخې تشبیه په دوه ډوله ده.

نادره تشبیه، مبتذله تشبیه

۱ - نادره تشبیه هغه تشبیه ده چې په شاعرانو کې لږ استعمال ولري او یا کوم شاعر نوې پیدا کړې وي. لکه په دې بیت کې:

لکه خس د سیلاب خلاص له ګمراهۍ یم
پر اوږو د رهبر سپور یم تر منزله

* * *

چې یې خال په مخ کې وینم حیرانیږم
په جنت کې ولې ږدي عاصي یو ګام

د پورته بیت په لومړي نیم بیتي کې د "یم" "م" چې د مفرد متکلم لپاره متصل ضمیر دی مشبه او "خس" یې مشبه به دی. په دویم نیم بیتي کې "رهبر" مشبه او د لومړي نیم بیتي "سیلاب" مشبه به دی. د دویم بیت په لومړي نیم بیتي کې "خال" مشبه او په دویم نیم بیتي کې "عاصي" مشبه به دی. "مخ" مشبه، "جنت" مشبه به دی. څرنګه چې دغسې تشبیهات شاعرانو لږ کارولي دي، نو نادره تشبیه بلل کیږي.

۲ - مبتذله تشبیه، هغه تشبیه ده چې په شاعرانو کې خورا زیات استعمال ولري. لکه:

مخ دې لکه ګل صنم زلفې دې سنبل صنم

په پورته بیت کې "مخ" له "ګل" سره او "زلفې" له "سنبل" سره تشبیه شوي دي. څرنګه چې هر شاعر دغسې تشبیهات کاروي، نو ځکه ورته مبتذله تشبیه ویل کیږي.

تشبیه نور ډېر ډولونه هم لري، خو مهم یې همدغه وو چې دلته دروپېژندل شول.



## فعالیتونه

۱ـ یو تن زده کوونکی دې د ټولګي مخې ته راشي او تشبیه دې نورو ته ورو پېژني.

۲ ـ دوه زده کوونکي دې د ټولګي مخې ته راشي. یو تن دې د تشبیه د رکنونو نومونه واخلي او بل تن دې تعریف او په یوې بېلګې کې دې یې وښيي.

۳ـ یو بل زده کوونکی دې د ټولګي مخې ته راشي او د موقعیت له مخې دې د تشبیه ډولونه ووایي.

٤ـ دوه زده کوونکي دې د ټولګي مخې ته راشي، یو تن دې د مفروقې او بل تن دې د ملفوفې تشبیه بېلګې ووایي.

۵ـ دوه زده کوونکي دې د ټولګي مخې ته راشي، یو تن دې د ندرت او ابتذال د تشبیه توپیر څرګند کړي او بل تن دې هغه په بېلګو کې وښيي.

٦ ـ دوه زده کوونکي دې د ټولګي په وړاندې د غرض له مخې تشبیه څرګنده او بېلګې دې ووایي.

۷ـ ټولګی دې په مناسبو ډلو ووېشل شي. هره ډله دې د یوې تشبیه څو مثالونه پیدا او د ډلې یو تن استازی دې هغه د نورو په وړاندې تشریح کړي.

۸ـ همدا پورته ډلې دې په ګډه په یو کاغذ کې تشبیه او د هغې ډولونه په یوه ګراف کې څرګند کړي او د هرې ډلې یو غړی دې هغه د ټولګي په وړاندې نورو ته تشریح کړي.

۹ـ یو، یو زده کوونکی دې د ټولګي مخې ته راشي او په خپل وار دې په لاندې بیتونو کې مشبه، مشبه به، وجه شبه، د تشبیه توري او د تشبیه غرض ولټوي او تشریح دې یې کړي:

شونډې دي یاقوت دي مرغلري سپین غاښونه
سرتر پایه درست د پاچاهانو خزانه یې
چې بلا یې د قامت راته ښکاره شوه
ګویا پاخېده بلا د قیامت
څو به شمېرم زه غمونه د هجران
هومره ډېر دي لکه رېګ د بیابان
چې یې خال په مخ کې وینم حیرانېږم

په جنت کې ولې ږدي عاصي يو گام
لکه پټ سپاره د جنگ نېزې پرغاړه
دا اوږده بانه پرې پورې سترگې ستا
دادې کمخې په لېچو بلوسي
که دي ماران په لېچو دوه ساتلې دينه
دا څه قد دی دا څه سترگې دا څه مخ دی
داخه سروه څه نرگس دا څه گلشن دی
لکه باد صبا راشي ژر گذر کا
ما خوشحال چې ازمېيلی دی ميثاق ستا
که د زلفو مار يې وخوري عاشق گرم دی
چې يې لاس په اژدها باندې کښېښی
ښاپيرۍ چې ليده نشي سبب دادی
مخ دا ستا له شرمه نغاړي په حجاب
څو گلرنگه چهرې راغلې په جهان
بيا فنا شوې لکه گل د گلستان
نرگس کوز گوري له شرمه
ستا د سترگو په څواب
د جنت حورې که گوري ستا ومخ ته
نور به واچوي له مخه نقابونه



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې په کورونو کې د کوم شاعر شعرونه وگوري او په هغو کې دې د تشبيه او د هغې بېلگې پيدا او په کتابچو کې دې وليکي او په بله ورځ دې په ټولگي کې ولولي.

# پېغله ملالۍ



د افغانستان تاریخ له اتلولیو او مېړانو ډک دی. په دې ډګر کې نه یوازې نارینه برخه لري، بلکې مېرمنو هم د خپلو نارینه ورونو ترڅنګ زیاتې اتلولۍ او مېړانې ښودلې دي. دا هره یوه یې داسې ځېره ده چې کارنامې او مېړانې یې، سربېره پردې چې زموږ د ویاړ او افتخار نښنه ده، زموږ او د راتلونکو نسلونو لپاره د لارې او پله حیثیت لري. موږ د بېلا بېلو ټولګیو د پښتو ژبې په درسي کتابونو کې پښتنې نارینه او ښځینه ځېرې پېژندلې دي. ښایي د هغوی کارنامې د خپلې لارې مشال کړو او د هغوی د پښو پر پل، پل کښېږدو. دلته د مېوند د اتلې، پېغلې ملالۍ په اړه لنډ معلومات لولو.

ـ د ملالۍ نوم ولې د هرچا په خولو کې پروت دی؟

د ملالۍ د ژوند د پیښو په اړه پوره معلومات په لاس کې نشته. له موږ سره د هغې د ځای او کورنۍ سمه پته نشته او نه راته ښرگنده ده چې دا پیغله څوک، د چا لور او د کومې سیمې او کلي وه. د میوند د فتحې د ننگ او جنگ په ډگر کې ددغې نومیالۍ پیغلې نقش لکه د لمر په څېر هرچاته ښرگند دی. په دې اړه د خلکو له خولو راپاتې شوې خبرې او تاریخي شواهد لږ و ډېر یوه خوله دي. د وینا په ډېر لږ توپیر او بدلون د میوند په فتحه کې د هغې غوښ او ټاکونکی نقش تاییدوي.

د "پښتنې مېرمنې" د کتاب لیکوال، عبدالروف بینوا لیکي: ((د ۱۲۹۷ هـ. ق کال د برات د میاشتې پر اووه لسمه د دوشنبې په ورځ افغاني زلمیانو د خپل وطن د ساتنې په نیت سرونه پر میدان ایښي او د میوند ډگر ته د سرښندنې لپاره حاضرشوي وو. ټکنده غرمه وه. غازیان تږي او ستړي ستومانه وو. د میوند په دښته کې هېڅ اوبه هم نه وې. نژدې وه چې افغاني لښکر د تندې له امله ماتې وخوري. په داسې حال کې چې د لښکرو بیرغچي هم سخت زخمي شو او بیرغ یې له لاسه ولوېد، یوه پیغله راغله، بیرغ یې په سرو منگولو واخیست، ناره یې کړه:

خـــــال به د یار لــــه وینــو کـــــښېږدم
چې شینکي باغ کې گل گلاب وشرموینه
کــه پــه میونـد کــې شــهید نــه شــوې
خدایــږو لالیه بــې ننگۍ ته دې ســاتینه

ددې پېغلې دا غږ یو آسماني غږ و. د افغاني زلمیانو وینې یې په جوش راوستې او د (الله اکبر) په ناره یې پرغلیم یرغل وکړ. دښمنان یې تار په تار او خپله پاکه خاوره یې د هغوی له ناپاکو قدمونو څخه وژغورله. دا پېغله ملاله نومېدله.))

په نورو ځایونو کې پورتنی مفهوم د الفاظو په لږو ډېر بدلون سره داسې راغلی دی: ((یوې خواته د میوند پر دښته پراته د پېرنگي پوځونه په هر ډول وسلو او امکاناتو سمبال وو. بله خوا افغانان په تش لاس، خو د ایمان او عقیدې په وسله سمبال، د هغوی مقابلې ته راوتلي وو. هغوی په دې نیت او تکل وو چې دغه لښکرې له خپلې خاورې څخه وباسي او هېواد

د دوی له ناولو منګولو څخه آزاد کړي. له افغاني غازيانو سره په دغه جګړه کې افغاني مېرمنې هم شاملې وې. ځينو يې غازيانو ته خواړه، اوبه او باروت رسول او ځينې له خپلو پلرونو، ورونو او مېړونو سره اوږه پر اوږه د دښمن مقابلې ته ولاړې وې. د دغو نوميالیو په ډله کې يوه هم ملاله وه.))

د "افغانستان درمسير تاريخ" ليکوال د هغه وخت د يو نوميالي مؤرخ، ميرزا يعقوب علي خوافي د کتاب په حواله ليکي، په دغه جګړه کې له دولس زره انګريزي پوځ، عسکرو او صاحب منصبانو څخه د جګړې له ډګره يوازې (۲۵) تنه ژوندي په تيښته بريالي شول. د "زموږ غازيان" ليکوال، محمد ولي ځلمی د "نفتو لا خالفين" د کتاب (شيپور هايی پيروزی ميوند) له مخې ليکي: "کله چې د زياتې کلکې ژوبلې په نتيجه کې ميوند فتح او افغاني غازيان د خپلو شهيدانو د ښخولو په تکل کې وو، غازي سردار محمد ايوب خان پوښتنه وکړه، دغه نجلی څوک ده چې په يو داسې نازک حالت کې يې په خپلو ملي لندېيو افغاني لښکر په ننګ او غورځنګ راوست؟ ځواب ورکړ شو چې دا د يو شپون لور، ملاله او د ميوند د (کشک نخود) اوسېدونکې ده. بل ورته وويل، دا ډېره زړوره وه. د غازيانو تر څنګ يې بايد ښخه کړو. ايوب خان وويل ښه واياست. ملايانو او ملي مجاهدينو د بخښنې دعا ورته وکړه او هم هلته يې خاورو ته وسپارله."

همدارنګه مير غلام محمد غبار په (افغانستان درمسير تاريخ) او لويس دوپرې په خپل اثر (افغانستان) کې د ملالی سرښندنه او ننګياليتوب ستايي او تاييدوي يې.

له پورته څرګندونو دا ښکاري چې ملاله د ميوند په همدې تاريخي جګړه کې د شهادت مقام ته رسيدلې او تلپاتې نوم يې په برخه شوی دی. دغه ستره وياړلې کارنامه يې زموږ د هېواد په تاريخ کې په زرينو کرښو ليکل شوې. تر هغه چې افغانان او افغانستان وي، له چا به نه هېرېږي او په ډېر درناوي به لمانځل کېږي. د دې نوميالی او ننګيالی پېغلې قبر په ميوند کې معلوم او ډېر خلک يې زيارت ته ورځي.

روح دې تل ښاد او ياد وي!

د متن لنډيز:

هغسې چې وويل شول، زموږ تاريخ له نوميالیو آغلو او ښاغلو ډک دی. هغوی يا د خپل قوم په مشرۍ خلکو ته خدمت کړی، يا يې د تورې او قلم په زور د خاورې غليمان ځپلي او تېښتې ته اړايستلي، يا يې د پوهنې او علم بيرغ اوچت کړی او يا يې د قلم په ژبه په نظم او نثر خپل ويده وروڼه او خويندې راويښ کړې دي. دا هر يو په خپل ځای د درناوي او ستاينې وړ دي. پېغله ملاله د دې سلګونو پېغلو او شاه زلمو له ډلې څخه يوه ده چې په خپل پښتني غيرت يې خپل وروڼه له حتمي ماتې څخه ژغورلي او دښمن يې تار په تار کړی دی. د دوی ټول ژوند زموږ د اوسني او راتلونکي نسل لپاره يو لوست دی. بايد هغه په ډېر ځير او غور ولولو. هڅه وکړو داسې کارنامې له ځانه پرېږدو چې د راتلونکي نسل لپاره د افتخار او سرلوړۍ نښه شي.

## فعاليتونه

۱ـ پنځه تنه زده کوونکي دې په خپله خوښه د ټولګي مخې ته راشي او دوه، دوه دقيقې دې د پښتني شهامت په اړه خبرې وکړي.

۲ـ زده کوونکي دې پر پنځو ډلو وويشل شي. هره ډله دې په خپلو منځونو کې پر لاندې ټکو خبرې اترې وکړي:

- آزادي څه مفهوم لري؟
- د آزادۍ تر لاسه کول آسان دي او که ساتل يې؟ څنګه؟ بيان يې کړئ.
- د يوه هېواد د آزادۍ د ساتلو لپاره تر ټولو اړين شی کوم دی؟ ولې؟

هره ډله دې په لنډ ډول خپلې نظريې وليکي. بيا دې د هرې ډلې استازی په وار سره د ټولګي پر وړاندې خبرې وکړي. په پای کې دې پوښتنو ته ځوابونه ووايي او له خپلو نظريو څخه دې دفاع وکړي.

۳ـ هر زده کوونکی دې په ځانګړي ډول له لاندې کلمو څخه یو متن جوړ کړي او د نورو په وړاندې دې ولولي.

مېوند، ملاله، جګړې، شهادت، تلپاتې، ویاړ، تاریخ، کرښو، په ډېر درناوي، نومیالۍ او ننګیالۍ، پېغلې، د مېوند د شهیدانو په، او ډېر خلک یې زیارت ته ورځي.

روح دې ښاد او یاد دې تل تاند او تازه وي!

٤ـ دوه تنه زده کوونکي دې د نورو په استازیتوب د ټولګي مخې ته راشي. یو له بل څخه دې د ملالې د اتلولۍ په اړه پوښتنې وکړي او ځوابونه دې واوري. نور ټولګیوال دې ورته غوږ شي. په پای کې دې د پوښتنو او ځوابونو په اړه خپل نظر څرګند کړي.

٥ـ لاندې اصطلاحګانې او عبارتونه څه معنا لري؟ خبرې پرې وکړئ او که داسې نورې اصطلاحګانې او عبارتونه درته یاد وي، ویې وایئ:

د شړومبو مچ، د پوزې پېزوان، لور په لوټه تېره کول، د اوبو څګ ته لاس اچول، په شا تلل.




زده کوونکي دې د هېواد تېر تاریخ ته نظر واچوي او په هغه بهیر کې دې د پېغلې ملالې په اتلولۍ یوه مقاله ولیکي او بله ورځ دې یې په ټولګي کې د نورو په وړاندې ولولي.

نېکمرغه هغه څوک دی چې د نورو له ناوړو کړنو پند واخلي او پخپله یې سرته و نه رسوي.

لاندې شعر ولولئ، پر مفهوم يې ځان پوه او خوند ترې واخلئ:

په آزار د مظلومانو حايل مه شه
له لوگي د سويو زړونو غافل مه شه
د ټوپک د تورې غوڅ به ښبتتن روغ کا
مسلمان د آه په غشي گايل مه شه
که آزار د مسلمان د چا مطلب وي
دا مطلب يې تر قيامته حاصل مه شه
هسې خوی کوه چې نور عالم دې ستايي
ته په خپله د خپل ځان په ستايل مه شه
په جهان بده خواري نشته تر سواله
که دې زده د خپله پلاره سايل مه شه
ستا د حسن ياد زما په زړه کې ليک شول
دغه نقش مې له خاطره زايل مه شه
څو دې روح په تن کې شته دی اې کامگاره
يو ساعت د دين له چارو کاهل مه شه
«کامگار خټک»

# ډرامه څه ته وايي؟



د يوې ژبې ادبيات، که ليکلي وي او يا شفاهي، د ولس د مخينې، فرهنګ، ټولنيز او سياسي شعور ښکارندوی او په ډېرو حالتونو کې د يوې ټولنې د مخکښې او لارښود حيثيت لري. ټولنه هغه خواته بيايي چې وخت او شرايط يې غوښتنه کوي. د ظالم لاس له مظلوم څخه لنډوي. ټولنيزې ناخوالې خلکو ته بيانوي او له هغې څخه د خلاصون لار ورته ښيي. کيسه، ناول، رومان، ډرامه او ... بېلا بېل ادبي ډولونه او ژانرونه دي چې په خپل وار د ولسونو د پخوانيو، اوسنيو او يا راتلونکو پېښو او ژوند هينداره ده.

په لسم ټولګي کې مو د لنډې کيسې په اړه معلومات تر لاسه کړل. دلته به لنډ ډول د پښتو ډرامې په اړه خبرې کوو.

تاسو به هرو مرو د ډرامې نوم اورېدلی وي. ستاسو په اند ډرامه څه شی دی؟

ډرامه یا ننداره د یوناني ژبې له "ډراو" څخه جوړه شوې او معنا یې فعل او عمل دی. ډرامه او عمل له یو بل سره نه شلیدونکي اړیکې لري. پر دې بنسټ ډرامې ته په "فعل سره ښودنه" هم ویلای شو. د یوې موخې د څرګندتیا لپاره ډرامه تر ټولو غوره او اغېزمن عمل دی.

د جوړښت له مخې ډرامه درې ډولونه لري.

۱ـ د ستېج ډرامه، ۲ـ راډیویي ډرامه، ۳ـ تلویزیوني ډارمه. (فلمونه او ننداري په کې راځي.) هره یوه یې ځانګړې ژبه او وسایل لري.

د منځپانګې له مخې ډرامه په دوو ډولونو ده.

۱ـ تراژیکه یا تراژیدي ډرامه، ۲ـ کومیکه یاخندنی ډرامه

تراژیدي هغې ډارمې ته وایي چې د غم، درد، ویر او ژړا حالت او پېښې پکې راغلې وي. د کومیډي اصطلاح د هغې ډرامې لپاره کارول کېږي چې خوښي، خندا او نیکمرغي پکې نغښتې وي.

## د ډرامې بنسټیز توکي.

۱ـ کیسه: هره ډارمه باید یوه خوندوره کیسه ولري. کیسه چې څومره انساني فطرت او بشري ژوند ته نژدې وي، هغومره ډرامه ښکلې وي.

۲ـ ترتیب (پلاټ) یا اډانه. په کیسه کې د پېښو نظم، اوډون او ترتیب ته وایي. ډارمه پر دغه اډانې ولاړه ده. اډانه یا پلاټ دومره یو له بل سره تړلې او راکښلې وي چې د یوې کلمې له ایستو سره ورانیږي. په دې توګه په اډانه کې لنډیز، پرله پسیوالی او نظم لوی ارزښت لري.

۳ـ پیل، اوج او پای: د ډرامې پیل ښایي داسې وي چې لوستونکي، اورېدونکي او لیدونکي له ځان سره یوسي. د کیسې پیل د کیسې اوج ته لار هواروي. د ډرامې په منځ کې د بېلا بېلو لوبغاړو (کرکټرونو) تر منځ ټکر یا کشمکش رامنځته کېږي چې دې ته د ډارمې څوکه یا اوج وایي. دا غوټه بیا د ډرامې په پای کې ایله کېږي. د ډرامې پای باید منطقي وي او د لوستونکي، اورېدونکي او یا لیدونکي زړه ته پرېوځي چې د داسې پېښو پایله همداسې وي. د ډرامې لیکوال ته ښایي چې ډرامه په تصادفي او ناڅاپه ډول پای ته ونه رسوي.

لوبغاړي (کرکټرونه): د ډرامې لوبغاړي ښايي د ډرامې پېښو ته سا ورکړي او داسې يې پر مخ يوسي چې پر لوستونکو، اورېدونکو يا ليدونکو ژور اغېز و ښندي او دا هله شونې ده چې لوبغاړي د خپلې ټولنې رښتيني استازيتوب وکړای شي.

ډيالوګ او ژبه: په ډرامې کې داسې ژبه کارول کېږي چې د لوستونکو، اورېدونکو يا ليدونکو زړه په موټې کې کلک ونيسي او خوند ورکړي. هر لوبغاړي ته د هغه له پوهې سره سمه ژبه کارول په کار دي، داسې نه چې د بزګر او ډاکټر توپير ونه شي.

په ډرامې کې درې حالتونو ته ځانګړی پام اړول کېږي:

۱_ وخت: داسې چې بايد ډرامه او ژبه يې د يو مهال وي. يعنې داسې ونه شي چې ډرامه تاريخي وي او ژبه يې او سنۍ وي او نه داچې يو ځوان ته د زاړه سړي نقش ورکړ شوی وي.

۲_ ځای: د ډرامې پېښه چې په کوم ځا ی کې پېښېږي، بايد تصويرونه يې هم د همغه ځای وي؛ يعنې داسې نه وي چې پېښه په افغانستان او تصويرونه يې د نورې پرمختللې نړۍ وي.

۳_ عمل: دې ټکې ته پام په کار دی چې عمل او ژستونه له پېښې سره تړاو ولري؛ يعنې داسې نه وي چې مړی شوی وي او لوبغاړي خاندي.

د ډرامې پيل له لرغوني يونانه شوی دی. په لرغوني يونان کې شاعري ډېره غوړېدلې او ډرامه د يوناني ادب ارزښتناکه څانګه وه. په لرغوني مصر کې هم د يوې ډرامې ځرک لګېدلی چې نوم يې "ايپي ډوس" و او د يوه واکمن "اوسي رس" په مړينې ښودل شوې وه. بيا يې انګريزي ادب ته لار پيدا کړه. وروسته د هندي او عربي له لارې پښتو ته راغله.

په پښتو کې لومړۍ ډرامه د عبدالاکبرخان اکبر "درې يتيمان" ده. دغه ډرامه پر ۱۹۲۷ ميلادي کال کې ليکل شوې او روزنيزه بڼه يې درلوده. دا ډرامه د اتمانزيو د لېسې په کلنۍ غونډې کې ننداري ته وړاندې شوې وه. د هند د نيمې وچې تر وېش د مخه زياتره ډرامې د پيرنګي استعمار په وړاندې د مبارزې په ملاتړ ليکل شوې دي. په پښتو کې پر ډرامه يې

اصولو برابره ډرامه اسلم خټک لیکلې ده چې د "وینو جام" نومیږي او پر ۱۹۳۵ کال له راډیو نه خپره شوه. د پښتو زیاتره ډرامې په پښتونخوا کې رامنځ ته شوې دي او افغانستان د اړینو وسایلو د نشتوالي له امله تر ډېره له ډرامې بې برخې پاتې شوی دی. په کوزه پښتونخوا کې لاندې کسانو پښتو ډرامې لیکلي دي:

عبدالله جان اسیر، عبدالخالق خلیق، عبدالکریم مظلوم، امیر حمزه شینواری، داودشاه برق، سمندرخان سمندر، میا سید رسول رسا، یوسف ورکزی، عبدالله جان مغموم، رضا مهمندي، شوکت الله اکبر، رحمان کاکا خیل، ایاز داود زي، مراد شینواری، اشرف مفتون، رشید دهقان، اشرف دراني، خیال بخاري، ولي محمد خلیل، عمر ناصر، ډاکټر محمد اعظم اعظم، خالقداد امید، گل افضل خان، نثار محمد خان، همایون هما، عابد شاه عابد، نورالبشر نوید، ساحر اپریدی، محب الله شوق، همایون همدرد، فریدالله احساس او... .

پښتو ژبې ته له نورو ژبو څخه هم ډرامې را ژباړل شوې دي چې د لطیف وهمي له اردو نه ژباړلې ډرامه "د قرطبې قاضي" او د سراج خټک له انگریزي نه ژباړلې ډرامې "د وینز سوداگر" او "مکبث" د ستاینې وړ دي.

په افغانستان کې د ډرامې دا لیکوال د یادولو وړ دي:

پوهاند عبدالحی حبیبي، عبدالرؤوف بېنوا، ف. فضلي، عبدالمنان ملگری، عبدالروف قتیل، بسم الله کمکی، سیدجان ملال او یو شمېر نور.

د متن لنډیز:

د ډرامې کلمه له یوناني ژبې "ډ راو" نه راوتلې ده. فعل او عمل ته وایي. ډرامه او عمل یو له بل سره نه شلیدونکې اړیکې لري. په دې توگه ډرامې ته په "فعل سره ښودنه" هم ویلای شو. هره ډرامه باید یوه خوندوره کیسه او اډانه ولري.

ډرامه درې برخې ، پیل، اوج او پای لري. پیل یې باید داسې وي چې لوستونکي،

اورېدونکي یا لیدونکي له ځان سره یوسي. د کیسې پیل د کیسې اوج ته لار هواروي. د ډرامې په منځ کې د بېلابېلو لوبغاړو (کرکټرونو) ترمنځ ټکر یا کشمکش رامنځته کېږي چې دې ته د ډرامې اوج وايي. دا غوټه بیا د ډرامې په پای کې پرانیستل کېږي.

د ډرامې لوبغاړي باید ډرامې ته سا ورکړي او داسې یې پر مخ یوسي چې پر لوستونکو، اورېدونکو او لیدونکو ژور اغېز واچوي. په ډرامه کې داسې ژبه کارول کېږي چې د لوستونکو، اورېدونکو او یا لیدونکو زړه په موټې کې کلک ونیسي او خوند ورکړي.
په پښتو کې لومړۍ ډرامه د عبدالاکبرخان اکبر "درې یتیمان" ده چې پر ۱۹۲۷ کال یې لیکلې ده. تر دې وروسته په پښتونخوا او افغانستان کې یو شمېرلیکوالو د ډرامې لیکلو ته مخه کړې ده. د سټیج، راډیو او تلویزون لپاره ګڼې ډرامې یا ننداريې لیکل شوي دي.

د ډرامې بېلګه:

## د کلو رنځور

(پرده پورته کېږي.)

د پښتونخوا غرونه چې ځای پر ځای یې پر سر لړه واوره ښکاري، دومره هسک دي چې ته به وایې آسمان یې د ښکلولو لپاره راټیټ شوی دی. د شنو درو، پاکې فضا، رڼو اوبو منظره هومره ښکلې ده چې د انسان روح تازه کوي. د زرکو اوازونه او د کوهسار نسیم سړی په نڅا راولي. هغه بل پلو ته ارت او لوی دښتونه په نظر راځي او د غاټولو په ګلونو داسې ښکاري، ته به وایې چې د خپلواکۍ جګړه یې نن خلاصه شوې او پښتنو زلمیانو دا ځمکه د دښمن په وینو لړلې ده. خو چې سړی لږ ډېر ځیر شي، د دې غرونو په لمنو کې به ووینې چې "پښتون" رنځور پروت او له رنګه یې معلومېږي چې د کلو رنځور دی. مړ لا نه دی، خو د ده او د مرګ ترمنځ هېڅ هم پاتې نه دي. کله کله سترګې روښې کړي، مګر ژر د بېهوشۍ چپه پرې راشي. . .

سر ته یې"خیرات خور"، پښو ته یې "دمګر"، یو اړخ ته یې "خان" بل ته یې"ملک"

ناست دی. څلور سره د رنځور د رنځ په شاوخوا کې خبرې کوي.

خان په قهر: اوه، لا په لاس کې یې قوت شته! عجبه رنځور!؟ زما په خیال ټګي کوي.

ملک: باید بې مالګې ډوډۍ ورکړ شي... د رنځور داسې لاس غورځول خطر ناک وي!!

دمګر: تاسې بېغمه اوسئ. ما داسې دم نه دی "پو" کړی چې دی بیا سر راپورته کړي... خو دا یې په وجود پیری ننوتی دی. یوه "دودکه" به هم غواړي.

خان: په هر صورت باید لاسوونه یې وتړل شي.

خیرات خور: (په عجز) خو... خو... خو...

ملک: بیا څه خوسی خوسی لرې؟ په دې باب د چاشفاعت نشو منلای.

خیرات خور: توبه، توبه ... یه، یه ... زه او شفاعت!

تاسې ما مه ګنهګاروئ... خو، خو یوڅه... (په ګوته د رنځور واسکټ ته اشاره کوي.)

ملک: (خاندي) هه، هه، هه ... واسکټ غواړې؟

خیرات خور: هو، د خدای په جات ... اوس همدا یو واسکټ کفایت کوي.

خان: واخله، واخله، ... ستا خو هېڅ مړېده نشته!

(د رنځور واسکټ کاږي او ملک یې لاسونه تړي، دمګر یې څپلیو ته لاس اچوي او وایي:)

دمګر: زه نو تر چا پاته یم ... دا یې هم زما!

(رنځور سترګې روښوي، په ډېر قهر شاوخوا ګوري.)

دمګر: فضل، فضل، فضل؟ ملک کاکا د رنځور پیری سترګو ته راغلی ...؟!

خیرات خور: هو، هو سترګې یې بدې سرې شوې ... څه نورې بلاوې په سترګوویني.

ملک: چاره یې څه ده؟

خان: باید سترګې یې هم وتړل شي....

ملک: ښه دې ووېل ... د رنځورحال بد دی، باید هېڅ شي ته ونه ګوري... د رنځور لپاره استراحت ضرور دی. مورږ باید خپل رنځور څو مو توان وي، همداسې ويده وساتو، ويښوالی يې خطرناک دی!!

ټول په ګډه: بالکل درست!

(د رنځور سترګې هم تړي. رنځور لږ لږ په هوښ راځي.)

رنځور: څه کوئ؟ څه رانه غواړئ؟

تاسې خو زما هرڅه راڅخه غصب کړل. زما د باغ مېوې، د ځمکې غلې او نور نعمتونه تاسې وخوړل. زه مو په وچه ډوډۍ وغولولم. ... وينې مو راوڇې کړې، بې واکه شوم، په رنځ اخته شوم ... بيا لا هم په دې حال کې راڅخه وېرېږئ. لاسونه مو راوتړل. اوس يوازې دا کتل مو هم راباندې پيروزو نه دي؟ ولې ظالمانو؟

خيرات خور: الله توبه، پرتې او ڇټيات يې شروع کړل. ما ويل چې خيرات وکړئ، خيرات ... تاسې ونه منله. الله فضل!

رنځور: ڇټيات نه دي، رښتيا وايم ... تاسې د خپلې ګټې لپاره زما وينې راوڇې کړې. زه مو سترې ستومانه کړم. کلونه کلونه کېږي چې تاسې زما د لاس ګټې راڅخه اخلئ. جامې مې رانه کاږئ. هرڅه خورئ، خو زما د صحت غم نه خورئ. ... اوس مو د خپلې ګټې لپاره په بستر کې اچولی يم. کوم وخت چې زما هر څه خلاص شي، بيا به نو ما پرېږدئ او تاسو به... (دلته خيرات خور په خوله لاس ږدي او دمګر سر ښوروي.)

دمګر: خدای دې زمورږ کور او کلی له شيطانه وساتي. ... دا د شيطان خبرې او ډېر بد شګون دی. ... لکه چې پيری يې خولې ته راغی. بايد ژر يې خوله وتړله شي چې نور څوک يې دا پرتې وانه اوري.

ټول په ګډه: بېشکه!!

ملک: هو، يو رنځور بايد دومره ونه وېرېږي.

خان: ژر يې خوله پټوئ چې نور په دې رنځ اخته نشي.

(د رنځور خوله هم تړي. په دې وخت کې د شنو درو له منځه د ويښو زلميانو ډله لېدل کېږي چې د رنځور خواته راروانه ده او د ويښوالي ترانه وايي. *)

(*) د عبدالرؤف بېنوا ليکنه

## فعاليتونه

۱ـ درې تنه زده کوونکي دې د ټولګي مخې ته راشي. هر يو دې په خپل وار لاندې درېو پوښتنو ته ځوابونه ووايي:

الف: د جوړښت له مخې ډرامه څو ډولونه لري؟ نومونه يې واخلئ.

ب : د منځپانګې له مخې ډرامه په څو ډولونو ده؟ هر يوه يې څه شی څرګندوي؟

ج: يوه ډرامه څو بنسټيز توکي لري؟ نومونه يې واخلئ.

۲ـ د زده کوونکو شپږ دوه کسيزې ډلې دې د ټولګي مخې ته راشي. درې لومړۍ دوه کسيزې ډلې دې په خپل وار يوه تراژيدي او دويمه درې کسيزه ډله دې يوه کميډي ننداره د حرکاتو له لارې تمثيل کړي.

۳ـ يو تن زده کوونکی دې د ټولګي مخې ته راشي او ودې وايي چې د ډرامې د بيان ژبه ښايي څنګه وي. بېلګه دې وړاندې کړي.

٤ـ يو بل زده کوونکی دې د ټولګي مخې ته راشي او ودې وايي چې يوه کميډې ډرامه خپل پيغام څنګه ليدونکو ته وړاندې کوي.

۵ـ ټول زده کوونکي دې سوچ وکړي چې په ډرامه کې وخت، ځای او عمل څه معنا لري. د هغوی له ډلې څخه دې درې تنه د ټولګي په وړاندې هغه بيان کړي.

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې هڅه وکړي په خپلو کورنو کې يوه لنډه ډرامه وليکي. موضوع دې پخپله وټاکي او په بله ورځ دې هغه په ټولګي کې ولولي.




د روښانیانو غورځنګ د تېرې او زور په وړاندې د افغانانو د مبارزې یو روښانه فصل دی او په افغاني تاریخ کې یو څرګند او روښانه دریځ لري. د روښاني غورځنګ یوه ستره ځانګړتیا داده چې د خلکو د تنویر او د ټولنیز عدالت د تبلیغ لپاره یو پیغام هم لري. د روښانیانو ایدلوژي د شکل په لحاظ عرفاني او تصوفي بڼه لري، خو د محتوا په لحاظ یو ملي ازادي بښونکی غورځنګ دی. د دې غورځنګ په سر کې بایزید روښان و. غواړو د نورو وتلو شاعرانو او لیکوالو په لړ کې چې په تېرو ټولګیو کې مو وپېژندل، دلته بایزید روښان دروپېژنو.

روښان چې اصلي نوم یې بایزید دی، په ۹۲۶ هـ.ق. کې د پنجاب په جالندر کې زیږېدلی دی. پلار یې شیخ عبدالله نومیده. شیخ عبدالله په اصل کې د کندهار اورمړ و.

له کندهاره د وزیرستان کاڼي ګورم ته (د وزیرستان د بدر په وادۍ کې د غره لمنې ته یو ځای دی چې په پښتنو کې شهرت لري.) لاړل او هلته میشت شول. روښان وایي، زما پلار عبدالله قاضي د محمد زوی و. کورنۍ مو انصاري ده. محمد دولس زامن درلودل چې په دوی کې عبدالله په فضیلت مشهور و او قاضي توب یې کاوه. د محمد بل زوی خدایداد نومید چې زوی یې خواجه اسمعیل د عبدالله وراره و. دغه سړي ته بایزید عقیدت درلود. د مخزن الاسلام لیکوال، اخوند درویزه وایي، د وزیرستان په کاڼي ګورم کې د پښتنو څو قبیلې سکونت لري چې اورمړ او انصاري هم له دغو قبیلو څخه ګڼل کېږي. میاروښان له انصاري قبیلې څخه دی چې دغه قبیله په علم، صلاح او تقوا کې مشهوره ده. درویزه لیکي: "پوه شه ای زویه چې د کاڼي ګورم د سیمې په اورمړ افغانانو کې د عبدالله په نامه یو سړی و له پوهې او صلاح سره. هغه د عالمانو او صالحانو له اولادې څخه و. د قضا له مخې د هغه د بایزید په نامه یو زوی پیدا شو... ." بل ځای لیکي: "د بایزید پلار او نیکه دواړه د اورمړ عالمان وو. هم رښتیني وو په دین کې."

بایزید روښان په داسې یوې کورنۍ کې لوی شو. د خپل عصر دیني علوم، فقه، تفسیر، حدیث، اخلاق او تصوف یې لوستي وو. بایزید یو ریاضت کوونکی او د روحانیت پلوی و. پیاوړی مبلغ او مجاهد و. پنځه کاله یې په کور کې په ریاضت تېرکړل. په دې ډول د بایزید نافذ شخصیت او اغېزمن تبلیغي قوت او د مشرتابه وړتیا د څېړلو او پلټلو وړ خواوې دي. پر خلکو د ده شخصیت اغېزه کوله او د ده خبرې به یې په عقیدت او اخلاص اورېدې.

روښان په څلورو ژبو پښتو، فارسي، عربي او پنجابي پوهیده او په دغو څلورو ژبو یې لیکل او لوستل هم کول. په پښتو لیکنه کې یو خاص سبک لري چې ترده د مخه یې په پښتو کې نورې بېلګې لیدل شوې نه دي.

تر ده د مخه د پټې خزانې منظومې لرغونې ټوټې او د سلیمان ماکو د تذکرې منثورې نمونې (٦١٢ هـ. ١٢١٥ م.) لرو چې د پښتو ژبې د نظم او وینا له سمون سره برابرې دي؛ یعنې هغه ډول چې خلك پښتو وایي، لیکوال هم په هغه ډول خپل مطلب سم لیکي. په عربي ادب کې اته سوه کاله د مخه یو راز فني نثر هم باب شوی و چې جملو به یې سجع درلوده. لیکوال به داسې مسجع جملې سره جوړولې چې د پای کلمې به سره یو رنگه او موزونې وې.

روښان خپل پښتو نثر په دغه ډول فني او مسجع ډول لیکلی دی. خپله روښان ددغه سبك غوره کول یو الهامې غږ بولي چې ورته وویل شو:

"او بایزیده، وکښه خیرالبیان، په هغسې الحان چې یې به لوست سورة رحمن."

خیرالبیان د پښتو یو پخوانی پېژندل شوی کتاب دی چې ترموږ رارسېدلی دی. خیرالبیان د پښتو ځانگړو تورو لپاره ځانته بڼې او املا لري.

تر روښان وروسته اخوند درویزه خپل پښتو او فارسي مخزن الاسلام (١٠١٥ هـ_ ١٦٠٥م.) شاوخوا ولیکه چې د موضوع له پلوه له خیرالبیان او روښان سره مخالفت ښیي، خو د سبك او انشاء له مخې د روښان پیروي او تقلید کوي. تر دې وروسته په پښتو کې ډېر منثور کتابونه راوتلي دي او ټولو د پیر روښان د سبك پیروي کړې ده.

د روښان لاندې تالیفات موږ ته خرگند دي:

١ - خیرالبیان په پښتو، فارسي، عربي او پنجابي ژبولیکل شوی دی،

٢ - مقصودالمؤمنین، په عربي ژبه لیکل شوی،

٣ - صراط التوحید، په فارسي ژبه لیکل شوی دی،

٤ – فخرالطالبین،

بایزید روښان د یو پوه سړي په توګه د وخت د ښکېلاک پر خلاف له عقیدوي محاذ څخه جګړه پیل کړه. روښاني غورځنګ د یوې ملي ایدیالوژۍ په پیروۍ رااوچت شو. ده په ډاګه ویل، هرڅوک چې خپل ځان نه پېژني، خپل خدای هم نشي پېژندلای. روښان وویل، د خدای په نزد ټول انسانان مساوي دي. اصل و نسب او دنیایي اعتبار څه اهمیت نه لري.

کله چې بایزید د پیرورښان په لقب د اعتبار خاوند شو، هغه خلک یې ټول ترشاوخوا راټول شول چې د وخت د استبداد تر فشار لاندې ځپل شوي وو. د روښان تعلیمات چې سربېره پر مذهبي هغه یې ملي ارزښت هم درلود، داسې قدرت ونیو چې هېڅا له هغه څخه سر نشو غړولای.

د روښاني غورځنګ ایدیالوژیکي ارزښت دادی چې هغه له مذهبي عقیدې سره ملي مبارزه ملګرې کړه او خپلو مریدوانو ته یې له مذهبي تعلیم سره توره هم په لاس ورکړه. د ګورګاني دربار پلویانو چې هر څومره زور ولګاوه، د روښاني غورځنګ څراغ یې مړ نه کړای شو. روښان ځان د پښتنو مشر باله او د ده زوی جلال الدین هم ځان د پښتنو پاچا ګاڼه. دوی خزانه او تشکیلات درلودل او د جګړو شکل یې ګوریلایي و. روښان په پای کې جل وواهه او په ۹۸۵م. کال کې مړ شو. د روښان ملي مبارزې تقریبا ۱۶۰ کاله دوام وکړ او له کندهارڅخه تر سواته او له اباسین څخه ترکابله پورې ټوله سیمه یې د ګورګانیانو لپاره یو تنور ګرځولې وه.

د خیرالبیان موضوع:

د خیرالبیان ډېره برخه پښتو ده. د پښتو جملو په منځ کې د قرآن عظیم آیتونه او ځینې حدیثونه یا عربي مقولې د دلیل په ډول راوړل شوي دي. د قرآني آیاتو فارسي تحت الفظ ترجمې هم د کتاب پر حاشیه لیکل شوي دي. یوازې د کتاب په پیل کې د پنجابي لهجې ځینې جملې هم لیدل کېږي.

د خیرالبیان مضامین ټول شرعي احکام او عقاید او د تصوف او اخلاقو مباحث دي، د حلال او حرامو بیان دی او دا ټول د حنفي فقهې له کتابونو څخه رااخیستل شوي دي، لکه هدایه، کنز، قدوري او نور.

په خپله روښان خیرالبیان داسې معرفي کوي:

"کړی مې دی، خیرالبیان، په څلور ژبې، موافق له قرآن. په کې دی، بیان د رشتیا د دروغ د حلال د حرام او بیان د کړ و نکړ د هر مقام. (د خیرالبیان خطي نسخه)"

دا کتاب له لومړۍ پاڼې څخه په حمد و نعت شروع کېږي. نورې برخې یې پندونه او اخلاقي تبلیغ، له مرګه، قبر او د دوزخ له عذابه ډارونه ده. وروسته بیا د شریعت، طریقت، حقیقت او معرفت څېړنې راغلې دي. د شریعت په برخه کې د اسلام د پنځو بناوو (توحید، لمونځ، روژه، زکات او حج ) بیان دی. وروسته د طریقت او اخلاقو بیان راوړل شوی او د کامل پیر د متابعت په اړه څرګندونې شوي دي. د توحید مسئله یې ډېره څېړلې او په آسانه پښتو ژبه یې بیان کړې ده. په هرځای کې یې د دلیل او برهان په توګه د قرآن عظیم آیتونه، حدیثونه او د اسلامي لویانو ویناوې راوړي دي.

خیرالبیان له فقهي احکامو څخه یوازې د عباداتو برخه په تفصیل بیان کړې او دغه احکام یې له حنفي مذهبه رااخیستي دي. د خیرالبیان بله برخه اخلاق دي. اخلاق یې د اسلامي متصوفینو په ډول بیان کړي دي. له فیلسوفانه او حکیمانه بیان یې ډډه کړې ده.

د خیرالبیان په بحثونو کې د شریعت پر خلاف څه شی نشته. له دې امله پر ده او د ده پر لارویانو د الحاد لګېدلي تورونه ځای نه لري. د خیرالبیان ټول مضامین او بحثونه د فقهي عقایدو او اخلاقو په کتابونو کې د مخه لیکل شوي او ده پر پښتو اړولي دي.

د روښاني غورځنګ لنډه پېژندګلوي:

روښاني غورځنګ د روښان پیر له خوا پیل شو . د دې غورځنګ سیاسي مبارزې یوه پیړۍ په پر له پسې توګه د جلال الدین د روښان زوی، حداد د عمر زوی ، عبدالقادر د

حداد زوی او کریمداد د جلال الدین زوی تر مهاله پایښت وموند. د سیاسي خپلواکۍ غوښتلو دا غورځنګ د روښان پیر او جلال الدین اکبر د واکمنی پر مهال پیل اود دې غورځنګ وروستی سیاسي لاربښود، کریمداد و چې د هندي واکمن شاه جهان په وړاندې یې د خپلواکۍ ساتلو د مبارزې ډګر تود ساتلی و.

له عرفاني او ادبي پلوه د روښاني غورځنګ اغیزې یوازې په هغو پیرړیو او د روښاني واکمنۍ په سیمو کې محدودې پاتې نه شوې. روښان پیر د پښتو لیکدود او پښتو ادب د پراختیا او ودې لپاره ځانګړې هلې ځلې پیل او د پلي کولو لپاره یې بشپړه ژمنتیا درلوده. د روښان پیر په زیار د خیر البیان لیکل شوی کتاب ، نه یوازې دا چې د هغه پیر د نصایحو او لارښوونو له اړخه ارزښتمن دی، بلکې د پښتو لیکدود او پښتو ادبي نثر د تر ټولو پخوانۍ بیلګې په توګه خورا مهم ګڼل کېږي.

د روښاني نهضت ارزښت له عرفاني او تصوفي اړخه زیات دی. د دې نهضت لارویان له هماغه پیله بیا تر اوسه د عبادت او ریاضت ځانګړې لارې او طریقې لري چې په هند، پښتونخوا او افغانستان کې پیروان لري. په سیمه کې د تصوف له بېلا بېلو ټولګیو څخه یو مهم ټولګی همدا روښاني طریقه ده چې ریاضت او عبادت یې د نورو صوفیانه طریقو په څېر د اعتدال خوښوونکي او له هر ډول بنسټپالنې او سخت دریځۍ څخه پرهېز کوي.

روښاني نهضت د همدې ځانګړنو پر بنسټ د زیاتو څېړونکو او محققینو د پام وړ ګرځېدلی او د څېړلو لپاره یې زیاتو بهرنیو او کورنیو څېړونکو زیار ایستلی دی. د ناروې، فرانسې ، پخواني شوروي اتحاد، هند، پاکستان او زیات شمېر نورو هېوادونو لیکوالو له خپلو لیدلورو سره سم د دې نهضت څېړنه او پلټنه کړې ده. ځینو دا نهضت یو تصوفي او عرفاني خوځښت ګڼلی، ځینو بیا د خپلواکۍ د یوه غورځنګ په توګه یاد کړی او یو شمېر یې د اصلاحي او کلتوري خوځښت په توګه یادوي.

د متن لنډیز:

پیر روښان په میا روښان، بایزید انصاري او بایزید مسکین مشهور و. هغه د عبدالله زوی او د شیخ محمد لمسی دی. په ۹۲۶ هجري کال د پنجاب د (جلندر) د اورمړو د کلي (برکي) په یوې متوسطې کورنۍ کې سترګې پرانستي دي. دا کورنۍ (اورمړ) تراوسه د وزیرستان په (کاڼي ګورم) کې استوګنه لري. پیر روښان له کوچنیوالي څخه د تصوف له مسلک سره پوره مینه درلوده، هڅه یې کوله چې دغې مرتبې ته د رسېدو په خاطر یو کامل پیر پیدا کړي.

په لسمې او یوولسمې پېړۍ کې بایزید روښان، د ده کورنۍ، پیروانو او یو شمېر معاصرینو د هېواد د خپلواکۍ او ملي واکمنۍ د تر لاسه کولو په خاطر د وطن پالنې د پاک احساس له مخې نه سترې کېدونکې مبارزې کړي او په دې لاره کې یې خپل سرونه قربان کړي دي. له بلې خوا د تصوف او مذهب په جامه کې یې ډېر پښتانه د خپلواکۍ په روحیه روزلي او هم یې په پښتو ادبیاتو کې د خپلو خلکو د ویښولو په خاطر له ارزښت څخه ډکه پانګه زیاته کړې ده. سره له دې دښمنانو هڅې کولې چې د روښانیانو د ژوند کارنامې او مبارزې پټې کړي او پیر روښان د (پیر تاریک) په نوم ونوموي؛ خو دغو کارونو دښمنو ډلو ته د امید لار نه ده پرانستلې؛ بلکې د پیر روښان د ژوند او مبارزې په هکله یې د کورنیو لیکوالو په څنګ کې ډېرو ناروېژانو، انګرېزانو، ایټالویانو، فرانسویانو، جرمنیانو او (پخواني شوروي اتحاد) یو شمېر ختیځ پېژندونکو هم ددغه ملي غورځنګ په هکله لیکنې کړې دي. روښانیانو د بایزید په لارښوونه د هندي مغولي واکمنۍ د استبداد په وړاندې او د پښتنو د پخواني برم د بیا تر لاسه کولو په خاطر داسې تحریک رامنځ ته کړ چې د پښتنو په تاریخ او ادب کې د (روښاني غورځنګ) په نامه ونومول شو. دغه غورځنګ له یوې خوا په افغانانو کې سیاسي شعور را ژوندی کړ، له بلې خوا یې دوی د هېواد د آزادولو لپاره د هند د مغولي واکمنۍ د استبداد پر ضد مبارزې ته چمتو کړل.



## فعالیتونه

۱- یو تن زده کوونکی دې په خپله خوښه د ټولګي مخې ته راشي او ودې وايي چې پیرروښان ولې په پښتو ادبیاتو کې لوړ دریځ لري؟ نور زده کوونکي دې غوږ ورته ونیسي. هر زده کوونکی کولای شي په دې اړه خپل نظر وړاندې کړي.

۲ – په پورته متن کې د پیر روښان د لیکنو له مخې څه ویلای شئ چې په هغې کې د څه شي تله درنه ده. یو تن زده کوونکی دې د نورو په استازیتوب څرګندونې وکړي. که له بل زده کوونکي سره په دې اړه بل نظر موجود وي، ور زیات دې یې کړي.

۳ - روښاني غورځنګ ته ولې سیاسي بڼه ورکول کېږي؟ هر زده کوونکی دې په خپل وار پرې رڼا واچوي.

٤ – پیر روښان ولې په مسجع ډول خپل نثر لیکلی دی؟ لامل یې څه شی دی، دوه تنه زده کوونکي دې په دې اړه خپل نظر وړاندې کړي.

٥ – د پیر روښان د ژوند په دوران کې د پښتنو ټولنیز او سیاسي دریځ څنګه و؟ په دې اړه دې زده کوونکي خپل نظر وړاندې کړي او خبرې اترې دې پرې وکړي.



## کورنۍ دنده

د پیر روښان د لیکنې ځانګړتیا او په هغې کې د مذهبي رنګ د غلبې په اړه خپل معلومات په یوې څېړنیزې مقالې کې ولیکئ. د ښوونکي لارښوونو ته غوږ کښېږدئ.

د زده کړې په لار کې د ننني کړاو ګالل د سبا لپاره
د نېکمرغۍ زېرمه کول دي.

# په افغانستان کې د مطبوعاتو لنډ بهیر

صفحهٔ ۱ سال اول نمبر ۲

نگران

قیمت سالیانه

سراج الاخبار

۱۳۲۹

هر پانزده روز یکبار نشر میشود

در این اخبار از حوادث داخلیه و خارجیه و بعض مقالات مفیده درج میشود

رسنۍ یا مطبوعات د بشري ټولنو تر ټولو ارزښتمن او اړین رکن دی. هرڅومره چې په یوې ټولنې کې رسنۍ پرمختللې، آزادې او ناپلوې وي، په هماغه اندازه هغه ټولنه د عدالت او برابرۍ پر ستنو ولاړه او له ظلم، تېرې او تعصب څخه خلاصه وي. رسنۍ په یوې ټولنې کې مخکښ رول لوبوي او هر لوري ته چې وغواړي هغه ټولنه راکښلای شي. دولت درې رکنه لري چې له اجرایوي، عدلي او تقنیني څواکونو څخه عبارت دي، خو رسنیو د خپل ارزښت او اهمیت له مخې د دولت په دې څوکاټ کې ځان ځای کړی او تر ټولو لوړ ځای یې خپل کړی دی. رسنۍ د دې په څنګ کې چې په یوې ټولنې کې ناخوالو ته ګوته نیسي، د هغې لاملونه په ګوته کوي، د ټولنې تګلورې هم ټاکي اومرسته ورسره کوي. رسنۍ راتلونکو نسلونو ته د ولسونو د پوهې او فرهنګ په لېږد او انتقال کې مهم رول لوبوي. زموږ په ګران هېواد افغانستان کې رسنۍ په پرتله یېز ډول اوږد تاریخ لري او تر ننه یې د پراختیا بېلا بېل پړاوونه وهلي دي.

ـ ستاسو په فکر په یوې ټولنې کې د رسنیو او مطبوعاتو ارزښت په څه شي کې نغښتی دی؟

رسنۍ د ټولنيزو اړيکو د وسايلو په نامه يادېږي. په رسنيو کې خبري آژانسونه، ورځپاڼې، جريدې، مجلې، راډيو، تلويزيون او انټرنيټ شامل دي. څومره چې په يوه ټولنه کې د رسنيو شمېر زياتېږي، په همغه کچه پر عامه ذهنيت زيات اغېز اچوي. د سراج الاخبار خپرونې د خپلې لومړنۍ سرمقالې د "افتتاح کلام" په نامه په يوې برخې کې ليکلي: "... دا ثرگنده خبره ده چې "اخبارونه" په دې زمانه کې د دولتونو او ولسونو د ژبې په توګه ګڼل شوي دي. په اوسني وخت کې له وروسته پاتې او بدوي قومونو پرته داسې هېڅ يو دولت يا قوم نشته چې اخبار و نه لري. اخبار د "خبر" جمع ده چې ضد يې بې خبري ده."

چاپخونې يا مطبعې د رسنيو ډېر مهم جزء بللی شي. اوس په کمپيوټرونو کې د انټرنيټ له لارې سرې ډېر ژر د نړۍ له حالاتو، پوهنيزو او تخنيکي برياوو، تازه خبرونو او نورو موضوع ګانو څخه نيغ په نيغه خبرېږي. د معلوماتي ټکنالوژۍ له منځ ته راتګ د مخه دا کار شونی نه و. د دې ټولو موضوع ګانو د انتقال لپاره چاپخونو او مطبعو ته اړتيا وه. يعنې د خلکو غوږونو ته د معلوماتو په رسولو کې چاپخونو خپل ارزښت درلود.

په افغانستان کې مطبعه د لومړي ځل لپاره د امير شېرعلي خان د دويمې پاچهۍ (١٢٥٢ – ١٢٥٧ هـ ش) په پېر کې رامنځ ته شوه. په دې وخت کې د چاپ درې مطبعې موجودې وې. دوه يې د مصطفاوي او مرتضاوي په نامه وې. بله يې د "شمس النهار مطبعه" وه. شمس النهار په مطبعې کې د شمس النهار جريده چاپېده. د شمس النهار، مصطفاوي او د مرتضاوي درېواړو چاپخونو چاپ په ډېرينه توګه سرته رسېده. په هر حال په افغانستان کې د چاپ پيلامه له همدې درېو مطبعو څخه شوې ده. په دې مطبعو کې د چاپ کارونه په ډېر لږ ظرفيت سره ترسره کېده، خو بيا هم د افغانستان د ژورناليزم په تاريخ کې يې ډېر روښان او څرګند بنسټونه ايښي دي.

دمخه مو وويل چې مطبعه د لومړي ځل لپاره په افغانستان کې د امير شېرعلي خان د واکمنۍ په دويم پېر کې رامنځ ته شوه. له دې سره مل د شمس النهار په نامه ورځپاڼه هم د لومړي ځل لپاره د دې علم دوسته پاچا د پاچهۍ پرمهال منځ ته راغله. د دې ورځپاڼې د خپرو شوو ليکنو له مخې په دې وخت کې په کابل يا د هېواد په نورو برخو کې بله خپرونه،

نه وه. شمس النهار به کله په اوونۍ کې یوځل او کله په پنځلسو ورځو کې یو ځل خپرېده.
داسې بریښي چې شمس النهار به تر ٤٠ گڼو زیات چاپ شوی نه وي.

وروسته بیا د امیرحبیب الله خان په وخت کې (١٩٠٦م، ١٢٨٥ هـ ش) د مولوي عبدالرووف خاکي کندهاري په مسوولیت د "سراج الاخبار افغانستان" په نامه یوه جریده خپره شوه. له بده مرغه خپرونو یې دوام و نه کړ او لومړۍ گڼه یې وروستۍ گڼه شوه. بیا (١٩١١– ١٩١٨م) د "سراج الاخبار افغانیه" په نوم خپرونه رامنځته شوه. دا خپرونه په افغانستان کې د دوامداره ژورنالیزم پیلامه ده. د دې خپرونې بنسټ د هېواد پیاوړي شخصیت او تکړه ژورنالیست، علامه محمود طرزي د ١٢٩٠ هـ ش کال د تلې د میاشتې په ١٦ (اکتوبر١٩١١) کېښود. محمود طرزي غوښتل د دې خپرونې له لارې افغانان د ملت پالنې له روحیې سره اشنا کړي، د هېواد پالنې درس ورکړي، خپلواکۍ غوښتنه ور زده کړي او د هغه مهال علم او پوهه وروښیي. سراج الاخبار لومړی په ډبرینه مطبعه کې چاپېده چې وروسته بیا په حروفي بڼه چاپ شو. سراج الاخبار په دوو اوونیو کې یوځل چاپېده. د دې خپرونې مسوول چلوونکی له پیله تر پایه محمود طرزي و. په سراج الاخبار کې ادبي او علمي مقالې، عکسونه، انځورونه او کارتونونه خپرېدل. علامه محمود طرزي په سراج‌الاخبار کې د پښتو لیکل دودکړل چې د مولوي صالح محمد هوتک، غلام محی الدین افغان او نورو پښتنو لیکوالو له خوا لیکل کېدل.

تر شمس النهار او سراج الاخبار افغانیه وروسته "امان افغان" په داسې دورې کې په خپرېدو پیل وکړ چې د افغانستان خپلواکي تر لاسه شوې وه. امان افغان په ١٢٩٨ لمریز کال کې د وري د میاشتې په ٢٢ نېټه په خپرونو پیل کړی دی. دا اخبار تر نهم خپرنیز کال پورې په اوونیز ډول خپرېده. وروسته د ١٣٠٧ لمریز کال د لیندۍ د میاشتې په پنځلسمه ورځپاڼې ته لوړ شو. قطع او صحافت یې هم ښه شو او په معیاري بڼه خپرېده. په امان افغان کې خبرونه، مرکې، راپورتاژونه، تحلیلي موضوع گانې، تبصرې، سیاسي تفسیرونه، ویناوې او بیانیې، موعظې، تفریحي مطالب، شعرونه، داستانونه او داسې نور خپرېدل. د امان افغان لومړنی مسوول چلوونکی عبدالهادي داوي و.

په امان افغان پسې د "افغان" په نامه خپرونه رامنځته شوه. افغان د افغانستان لومړنۍ خپرونه ده چې د کلمې په رښتينې معنا د ورځپاڼې په بڼه خپرېدله. په ځينو ځايونو کې هغه خپرونه چې په اوونۍ کې دوه يا درې ځله خپريږي، هم د ورځپاڼې په نامه يادوي. افغان د ۱۲۹۹ لمريز کال د چنگاښ په ۱٤ ( ۱۹۱۹م) په خپرېدا پيل وکړ. په دې ورځپاڼې کې کورني او بهرني خبرونه، اخلاقي، علمي او تفريحي موضوع گانې خپرېدې. مسوول چلوونکی يې محمد جعفر کندهاری و.

له "افغان" وروسته د "ابلاغ" وار راغی. نومړې خپرونه هم د ورځپاڼې په بڼه خپرېده. ابلاغ د ۱۳۰۰ لمريز کال د تلې مياشتې په لومړۍ نېټه په خپرونو پيل وکړ. دا خپرونه به په يوې پاڼې کې چاپ او پر دېوالونو او د گنې گوڼې په ځايونو کې به د خلکو د لوستلو لپاره ځړول کېده. د دې ورځپاڼې لومړنی مسوول چلوونکی مدير ميرزا محمد اکبرخان و.

په دې موده کې د ابلاغ، حقيقت او اتحاد مشرقي ورځپاڼې او د غازي، اتفاق اسلام، ستاره افغان، اتحاد اسلام (بيدار)، اصلاح، طلوع افغان او ارشادالنسوان په نومونو اوونيزې خپرېدې. ارشادالنسوان لومړنۍ اوونيزه وه چې د افغانستان د ښځو لپاره خپرېده. دا اوونيزه په ۱۲۹۹ لمريز کال کې د محمود طرزي د مېرمنې، اسما اسميه له خوا رامنځ ته شوه. دې اوونيزې خبرونه، مقالې، تبصرې، راپورتاژونه او په ښځو پورې اړوند مسايل خپرول.

له کورني اړودوړ څخه په وروسته پېر (۱۳۰۸ – ۱۳٤۳ لمريز) کې مطبوعات په دولت پورې محدود وو. د ورځپاڼو په سر کې د "اصلاح" ورځپاڼه يو ځل بيا رامنځته شوه چې لومړی ځل په ۱۳۰۰ لمريز کال کې د بشير احمد او بيا وروسته د حافظ فيض محمد تر مشرۍ لاندې چاپېده. وروسته د انيس (۱۳۰٦لمريز)، هېواد (۱۳۲٦لمريز)، کابل ټايمز (۱۳٤۰ لمريز) او جمهوريت په نومونو ورځپاڼې خپرېدې. همدارنگه په يو شمېر ولايتونو کې د اتحاد مشرقي، اتفاق اسلام، پروان، طلوع افغان، بيدار، اتحاد، وړانگه، ستوری، بدخشان، نيمروز، هلمند، سنايي او کندوز په نومونو خپرونې خپرېدې. په دې موده کې يو زيات شمېر مجلې او جريدې هم خپرېدې چې هرې يوې يې خپل لوستونکي درلودل

او په زړه پورې موضوع گانې يې خپرولې. د افغانستان راډيو د لومړي ځل لپاره په ۱۳۱۸ لمريزكال كې خپرونې پيل او بېلا بېل پړاوونه يې ووهل چې اوسني حالت ته رارسېدلې ده. همدا راز د افغانستان د تلويزيون دستگاه د ۱۳۵۷كال په لومړيو كې ازمېښتي خپرونې پيل كړې. د وخت په تېرېدو يې ورو، ورو خپرونې د ورځې څو ساعتونو ته ورسېدې او اوس شپه او ورځ د نړيوالې شبكې په مرسته خپرونې كوي او د نړۍ په زياترو هېوادونو كې يې مينه وال ننداره كوي. د ورځپاڼو، مجلو او جرېدو ترڅنگ د څرگندې اړتيا له مخې په ۱۳۱۹هـ. ش. كال كې "باختر آژانس" رامنځ ته او په فعاليت يې پيل وكړ. باختر اژانس د خپلو خبريالانو په واسطه له كابل او ولايتونو څخه خبرونه راټولول او د خپرولو لپاره يې راډيوگانواوگڼو نورو خپرونو ته وركول.

كه څه هم په افغانستان كې د آزادو مطبوعاتو پيلامه د امير امان الله خان د واكمنۍ مهال ته منسوبه ده، خو په حقيقت كې د مطبوعاتو ازادي ډېر د مخه د محمود طرزي په وسيله په "سراج الاخبار افغانيه" كې پلې شوې ده. سراج الاخبار افغانيه د محمود طرزي د ازادۍ غوښتنې او پالنې ډېر څرگند ثبوت دی چې په بېلابېلو تدبيرونو يې خپل دغه ارمان ترلاسه كړی دی. د دې ادعا د ثبوت لپاره په نومورې خپرونې كې د "حی علی الفلاح" په نامه د يو مضمون خپرول و چې په هغې كې يې د دربار د هيلو پر خلاف د هېواد خپلواكي اعلان كړې وه او په مقابل كې يې ۲٤ زره كابلۍ روپۍ جريمه شوی او خپرونه مصادره شوې وه.

د امير امان الله خان د واكمنی پر مهال د "انيس" په نامه د يوې خپرونې پيل د مطبوعاتو له ازادۍ سره وتړل شو. انيس د هېواد د خپلواكو خپرونو د مخكښې په توگه په (۱۳۰٦ لمريز) كال كې چاپ شو. انيس د وخت د پوليسو رژيم "د سرخ پوشو" غلو او جوارگرو په نامه تر نېوكو لاندې ونيو. په پايله كې يې د انيس اداره وتړل شوه او چلوونكی يې محاكمې ته وړاندې كړای شو. د انيس مسوول چلوونكي د خپلې منطقي او مستدلې دفاع له امله برائت وموند او د بيان او مطبوعاتو د آزادۍ د پلي كولو د اتل په توگه يې زموږ د خلكو له خوا تود هركلی وشو. همدا راز د نسيم سحر، ندای خلق، انگار، وطن، ولس، نيلاب او

... په نامه ازادو خپرونو فعالیت کاوه. د دې ترځنګ د ۱۳٤۱ – ۱۳۵۲ کلونو ترمنځ په هېواد کې شاوخوا ۳۰ ازادو خپرونو فعالیت کاوه چې هرې یوې خپله تګلاره او نشراتي مشي لرله.

پر ۱۳۸۱ لمریز کال په هېواد کې د موقتې او وروسته د انتقالي ادارې له راتګ وروسته د بیان او مطبوعاتو ازادي د دولت له خوا تضمین شوه. په دې بهیر کې زیات شمېر خپرونې، خبري رسنۍ، راډیوګانې، تلویزیونونه او نورې وسیلې رامنځ ته شوې. د مطبوعاتو نوی قانون د افغانستان د پارلمان له خوا تصویب شو او په دې توګه یې د بیان او د مطبوعاتو آزادۍ ته لار هواره کړه. نن په هېواد کې شاوخوا پنځه سوه خپرونې، زیات شمېر راډیوګانې او شخصي تلویزیونونه او همدارنګه د لسو په شاوخوا کې خبري رسنۍ په فعالیت بوختې دي.

د متن لنډیز

مطبوعات د یو ولس د ویښتیا او بیدارۍ نښه ده. د رښتینو مطبوعاتو دنده د ولس رهبري ده؛ له ظالم څخه د مظلوم ژغورل دي؛ د حق او باطل ترمنځ توپیر دی؛ ښه ته ښه او بدو ته بد ویل دي چې پرمختللي هېوادونه پرې د نېکمرغۍ او سعادت لوړو پوړیو ته رسیدلي دي. په افغانستان کې مطبوعات په پرتله ییزه توګه اوږده مخینه لري. سید جمال الدین افغان له هېواده د وتلو پرمهال امیرشېرعلي خان ته د یو شمېر سلا مشورو په لړ کې د شمس النهار په نامه د یوې خپرونې د رامنځ ته کېدو سلا ورکړه. له هغه راوروسته مطبوعاتو په افغانستان کې پراختیایي بهیر پیل کړ. د امیر شېر علي خان د واکمنۍ پر مهال د لومړي ځل لپاره د شمس النهار په نامه خپرونې په خپرېدو پیل کوي. د مطبوعاتو بهیر په هېواد کې کله غړند او کله هم د یو زور او قوت په څېر راځرګند شو. په بېلابېلو رژیمونو کې یې خپلې ودې ته دوام ورکړ. نن سبا په افغانستان کې د بیان او مطبوعاتو ازادي تضمین شوې ده. زیات شمېر خپرونې، راډیوګانې، تلویزیونونه، خبري رسنۍ، برېښنایي رسنۍ، انټرنېټ او ویب پاڼې فعالیت کوي او د خلکو ارمانونه او هیلې

خپروي. د يادونې وړ ده چې رسنۍ او مطبوعات بايد ټولنه يو سالم لوري ته رهنمايي کړي؛ د هېواد او ولس ملي ګټو ته وفادارې وي او د پردي کلتور د خپرولو پرځای د خپل افغاني کلتور خپرېدا ته پام وکړي.

## فعاليتونه

١ – لس تنه زده کوونکي دې په وار د ټولګي مخې ته راشي او د رسنيو د ارزښت په اړه دې خپله پوهه او معلومات نورو زده کوونکو ته وړاندې کړي.

٢ - يو تن زده کوونکی دې د ټولګي مخې ته راشي او دې پوښتنې ته چې ولې رسنيو ته د يو دولت د څلورم رکن په سترګه کتل کېږي؟ ځواب ووايي. نور زده کوونکي دې په بحث کې برخه واخلي.

٣ – ټول زده کوونکي دې "په هېواد کې موجودې رسنۍ او د هغوی تګلوری" تر نامه لاندې په آزاد بحث کې برخه واخلي. لومړی دې د رسنيو رسالت او دنده څرګنده کړي او وروسته دې د هغو رسنيو په اړه خبرې وکړي چې پېژني يې. يو تن دې د غونډې د منشي په توګه د بحث عمده ټکي او پايلې له ځانه سره وليکي او خپل رپوټ دې چمتو کړي.

٤ – يو تن زده کوونکی دې د ټولګي مخې ته راشي او د بيان د آزادۍ د اړتيا په باره کې دې نورو ته معلومات وړاندې کړي. بل زده کوونکی دې د بيان د آزادۍ په اړه خپل نظر څرګند کړي چې آيا د بيان آزادي څه محدوديت هم لري او که نه؟

٥ – څو تنه زده کوونکي دې د ټولګي مخې ته راشي او په هېواد کې دې د رسنيو د تاريخي بهير او پراختيا په اړه خبرې وکړي.

٦ – څو تنه زده کوونکي دې په خپل ټولګي کې د يوې جريدې د جوړولو په اړوند خبرې وکړي. د ښوونکي په لارښوونه دې په عملي اقدام لاس پورې کړي.



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د خپلو معلوماتو له مخې د اوسنيو رسنيو په اړه يو مخ ليکنه وکړي. پورته لوستل شوی لوست دې په پام کې ونيسي. په بله ورځ دې د پښتو په درسي ساعت کې ټولګيوالو ته واوروي.

لاندې شعر ولولئ او خوند ترې واخلئ:

هر ملخی د سربازۍ له هنر څه زده
چې په دا هنر کې سر ښندې پتنګ دی
لا تر اوسه يې ماغزه په کرار نه دي
چا چې ما سره وهلی سر په سنګ دی
لا په خوب کې په لړزه پرېوزي له کټه
چې د چا تر غوږ زما د توري شرنګ دی
که په دا دور مې ګوري هغه زه يم
چې مې داغ په خاطر ايښی د اورنګ دی
درست جهان مې و مغلو ته خيبر کړ
ځای ځای يې پښتانه وته قلنګ دی

«خوشحال خان ختټک»

نېکمرغه هغه څوک دی چې له خپلې هرې خطا څخه
نوې تجربه تر لاسه کړي.

((سقراط))

# ترکیب او له جملې سره د هغه توپیر

په مخکنیو ټولګیو کې مو ګرامر پېژندلی دی. ګرامر د ژبې د جوړښت د نظام علمي شرحې ته ویل کېږي. ګرامر د یوې ټاکلې ژبې د کلمو، جملو د رغاونې او جوړښت د قاعدو سیستم تشریح او څېړي یا د ژبې صرفي او نحوي جوړښت او ساختمان تر کتنې او څېړنې لاندې نیسي؛ یعنې د یوې ژبې د کلمو د تغییر او بدلون بڼې او د هغوی ترکیب ، د جملو جوړښت او څرنګوالی بیانوي.

په دې لوست کې په ترکیب باندې خبرې کېږي.

تاسو د ترکیب په اړه څه پوهېږئ؟

تر دې د مخه چې ترکیب وپېژنو، ښه به وي جمله وپېژنو. د جملې د پېژندلو لپاره د نحوې پېژندلو ته اړ یو. نحوه هغه پوهنه ده چې د جملو، فقرو، عبارتونواو ترکیبونو د جوړښت له قاعدو څخه غږیږي. د جملې د اجزاوو قاعدې پکې بیان او څرګندیږي. په نحوه کې نحوي ترکیبونه او جملې د معنا او جوړښت له مخې په پام کې نیول کېږي. جمله یوه عربي کلمه ده او مجموعې ته ویل کېږي. جمله د الفاظو او کلمو داسې ترکیب دی چې یو بشپړ مفهوم افاده کوي. هغه توکي چې جمله ورڅخه جوړیږي، د جملې اجزا ورته وایي.

نحوه په ټاکلې ژبې کې د ګرامر د یوې برخې په توګه او په یوې جملې کې د کلمو د ګرامري ترکیب د یوځای کېدو طریقه، ترتیب او معنوي رابطه څېړي؛ په دې معنا چې د جملو لفظي جوړښت او معنوي رابطه او ځانګړتیاوې څېړي. ترکیب د دوو یا زیاتو (خپلواکو او نا خپلواکو) کلمو له یوځای کېدو څخه عبارت دی چې اجزا یې یو له بله سره ارتباط ولري.

څنګه چې د نحوې څېړنې د مطالعې او څېړلو اصلي او اساسي مواد جملې دي، نو په همدې توګه د کلمو ترکیب هم د جملو په جوړښت کې یو توکی یا یوه برخه ګڼل کېږي. لکه "هلك ولوېد." دا یوه ساده جمله ده چې له دوو اساسي برخو څخه جوړه شوې ده. لومړۍ برخه یې "هلك" د جملې مبتدا (فاعل - مسند الیه) او دویمه برخه یې "ولوېد" د جملې خبر (فعل- مسند) دی. که چېرته په همدې جملې کې د جملې له فاعل "هلك" سره ځینې کلمې چې نحوي رابطه سره ولري، یوځای شي، په دې وخت کې دغه مبتدا "هلك" له خپلو اړوندو برخو سره یو ترکیب جوړوي. لکه:

ښه هلك، یو ډېر هوښیار هلك، یو غښتلی تکړه هلك ... دا ډله کلمې له یو بل سره نحوي رابطه لري او په پورتنۍ جمله کې له "هلك" سره د مبتدا په توګه راځي. دې ته "ترکیب، غونډ یا عبارت" وایي. همدارنګه له "ولوېد" سره چې د جملې "خبر، فعل یا مسند" دی، یو شمېرنورې کلمې یوځای شي او نحوي رابطه سره ولري، لکه: "سخت ولوېد. په زوره ولوېد. وران ولوېد. بې ځایه ولوېد." د جملې دویمه اساسي برخه (خبر) جوړوي.

په پورته اسمي ترکیب کې ګورو چې "هلك" د ترکیب اصلي جزء دی او له خپلو اړوندو کلمو سره یو اسمي غونډ بلل کېږي. په دویمه برخه کې "ولوېد" د فعلي ترکیب اساسي برخه ده؛ نو ځکه فعلي ترکیب (غونډ) ورته وایي. اسمي او فعلي دواړه ترکیبونه په ځانګړې توګه بشپړ مطلب نشي رسولای. یوازې د یو غونډ په راوړلو معنا نیمګړې پاتې کېږي. ترکیب د معنا او

جوړښت له مخې بېل ډولونه لري.

ترکیبونه د معنا او مفهوم له مخې له کلمو سره یو شی ګډ لري، مګر توپير يې دا دی چې ترکیبونه مرکب مفهومونه څرګندوي او د نومونو او فعلونو معناګانو ته زیاته ټاکلې او مشخصه بڼه ورکوي. په دې توګه ویلای شو.

- ترکیب له دوو یا زیاتو خپلواکو یا ناخپلواکو کلمو څخه جوړېږي،
- په ترکیب کې يوه کلمه د بلې تابع ګرځي،
- په ترکیب کې د کلمو تر منځ نحوي رابطه ټينګېږي،
- ترکیب د کلمې په پرتله پراخ او مرکب مفهوم څرګندوي،
- د جملې او ترکیب تر منځ توپير او بېلوالی اړين دی.

## د جملې او ترکیب تر منځ توپير

د جملې او ترکیب تر منځ خاص توپير شته. هغه ځانګړتیا چې د جملې په جوړښت کې موجوده ده، په ترکیب کې نه لیدل کېږي. جمله له مبتدا او خبر څخه جوړه ده. د یوې جملې مبتدا یا خبر هر یو له (اسمي یا فعلي) ترکیبونو څخه جوړېږي. د بېلګې په توګه، په بشپړه او پوره جملې کې مبتدا او خبر او همدارنګه د هغوی اړوندې برخې ځای لري، خو په ترکیب کې دغه برخې نیمګړې وي.

په پښتو کې ترکیبونه په دوو ډلو (اسمي او فعلي) برخو بیلېږي. هره برخه بیا په خپل وار په جلا جلا ډلګیو وېشل کېږي.

اسمي ترکیبونه: دا هغه ترکیبونه دي چې د ترکیب اصلي او اساسي برخه يې نوم وي. دا اسمي ترکیبونه په جمله کې د مبتدا په برخه کې راځي.

اسمي ترکیبونه په اضافي ترکیب، توصیفي ترکیب، عددي ترکیب اونورو وېشل شوي دي.

فعلي ترکیبونه، هغه ترکیبونه دي چې د جملې د خبر په برخه کې راځي.

اصطلاح له ترکیب سره توپير لري. اصطلاحي واحدونه هغه تعبیرونه دي چې هر ولس يې د خپل ژوندانه په چاپېریال کې د خپلو دودونو، اخلاقو او روحیاتو په چوکاټ کې په خپله ژبه کې کاروي. دا واحدونه نه یوازې په خبرو اترو کې استعمالیږي، بلکې په لیکنه کې هم کارول کېږي. اصطلاح ګانې که له یوې خوا نه د ژبې د لغوي برخې بشپړوونکي دي، له بلې

خوا یو ادبي خوند او رنګ هم لري. په ژبه کې دا ترکیبونه ځانته جلا او بېلې ځانګړتیاوې لري، یعنې نحوي ترکیبونه او ژبنی اصطلاح ګانې یو تر بله توپیر لري.
اصطلاح ګانې یو ډول ژبني ترکیبونه دي چې د ژبې خاص عنصر او ژبني خاص ډول څرګندونو ته ویل کېږي. اصطلاح ګانې د زمانې په اوږدو کې د خلکو له خوا منځته راغلي او په ژبه کې ثابت لغوي ترکیبونه دي. ددغو ترکیبونو برخې دومره ثابتې او ټینګې اړیکې سره لري چې بېلول یې ګران کار دی.
اصطلاح ګانې د خبرو کولو پر مهال سمدلاسه نوي نه جوړېږي چې د کوم ټاکلي مطلب د څرګندولو لپاره ورځنې کار واخیستل شي، بلکې په جوړ شوي ډول د ژبې د ویونکو په حافظه کې ساتل کېږي او د اړتیا پرمهال د جوړ شوي ترکیب په توګه کارول کېږي. په خپله دغه ترکیب نېغ په نېغه معنا نه ورکوي، خو مجازي معنا ترې اخیستل کېږي. لکه:
لور په لوټه تېره کول، اوښ په بډه منډل، لوی لاس لرل، لار وهل، ژبه کول، پښه نیول، زړه خوړل، له خوشحالۍ نه په جامو کې نه ځاییدل، تر بوسو لاندې اوبه تېرول، جګ لو کول، سر ټکول، سر تندی وهل، خوا سړول، سور او شین اوښتل، زړه تشول، غم خوړل، لاس اخیستل، تار اچول، د اسمان کټ، نوک او وری، د لستوني مار، د غاړې غور، د شړومبو مچ.

**اصطلاح ګانې د معنا او جوړښت له مخې دا لاندې نښې لري**:
۱ـ ثابت داخلي ترکیب چې په ګډه یو عمومي معنا او مفهوم څرګندوي. په اسمي او فعلي ترکیبونو کې یې اهمیت یو شان دی. اصطلاحي فعلي ترکیبونه که څه هم د مرکبو فعلونو په څېر ښکاري، خو له مرکبو فعلونو څخه توپیر لري، ځکه په ثابتو فعلي ترکیبونو کې له ټولو ترکیبونو سره ګډه عمومي معنا ورکوي.
۲ـ اصطلاح ګانې له هغو توکو څخه جوړېږي چې په یو ثابت ترکیب کې خپله لغوي معناله لاسه ورکړي. که چېرته ددغه ثابت ترکیب واحدونه بېل بېل معنا شي، نو خپله ټاکلې اصطلاحي معنا له لاسه ورکوي.
د بېلګې په توګه، "لار وهل"، "ژبه کول"، "غم خوړل"، "زړه خوړل". که ددغو بېلګو هره برخه یعنې هر یو توکی یې په جلا جلا توګه معنا کړو، نو بیا هغه خاصه اوټاکلې معنا نه ورکوي. ځکه

"لار وهل"کې د تګ معنا پرته ده. په لغوي معنا کې يې "لار" او "وهل"کوم معنوي ارتباط سره نه لري. يا ژبه او کول سره جلا مفهومونه دي.

۳_ له ترکيبونکو توکو څخه عمومي معنا لاس ته راځي؛ يعنې ټول ترکيب د يو واحد مفهوم په توګه معنا ورکوي.

٤_ په اصطلاحي واحدونو کې ځينې محاورې او متلونه هم راتلای شي او همدارنګه د ليکوالو او پوهانو غوره ويناوې هم پکې شاملې دي، لکه:

پوره ورک دې کړه دوه کوره. د کبر کاسه نسکوره ده.

٥_ اصطلاح ګانې ټکي په ټکي نه ژباړل کېږي.

٦_ هره ژبه جلا او خاص اصطلاحات لري.

٧_ اصطلاحي توکي د خپلو معنوي ځانګړنو له مخې له نورو ازادو ترکيبونو سره توپير لري.

٨_ په ژبې کې دغه ترکيبونه ثابت وي، نوي نه جوړيږي.

۹_ اصطلاحي توکي د نورو ازادو لغتونو په څېر د ژبې په لغوي سيستم کې موجود وي.

د متن لنډيز:

ترکيب، اصطلاح او جمله بېلا بېل نحوي مطالب دي. د جملو، فقرو، عبارتونو او ترکيبونو د جوړښت له قاعدو څخه نحوه خبرې کوي. جمله د الفاظو او کلمو داسې ترکيب دی چې يو بشپړ مفهوم افاده کوي. هغه توکي چې جمله ورڅخه جوړيږي، د جملې اجزا ورته وايي. ترکيب د دوو يا زياتو (خپلواکو او نا خپلواکو) کلمو له يوځای کېدو څخه عبارت دی چې اجزا يې يو له بله سره ارتباط ولري. د کلمو ترکيب د جملو په جوړښت کې يو توکی يا يوه برخه ګڼل کېږي. ترکيب او اصطلاح د کاروني خپل خپل ځايونه لري. ترکيب رامنځته کېږي او اصطلاح ګانې رامنځ ته شوې کلمې دي، په ټولنې کې خپلې ځانګړې او ټاکلې معناګانې لري. اصطلاح د يو مطلب د ښه بيان لپاره کارول کېږي. ترکيبونه او اصطلاح ګانې د يوې ژبې د فرهنګ د بډاينې څرګندوی دي.

## فعاليتونه

۱ـ زده کوونکي دې پر پنځو ډلو وويشل شي. هر يوه ډله دې په وار د کلمې، ترکيب، اصطلاح، متل او جملې پېژندنه وکړي. بېلګې دې راوړي. د هرې ډلې استازی دې خپل معلومات نورو زده کوونکو ته وړاندې کړي.

۲ـ يو تن زده کوونکی دې د ټولګي مخې ته راشي او په ژبه کې دې د اصطلاح ګانو او د هغې د پانګې او ژبني ارزښت او بډاينې په اړه نورو ته معلومات ورکړي.

۳ـ يو تن زده کوونکی دې د ټولګي مخې ته راشي او د ټولو زده کوونکو په ګډه مرسته دې د پښتو اصطلاح ګانو يو لېست پر تختې وليکي. ټول زده کوونکي دې هغه په خپلو کتابچو کې يادداشت کړي.

٤ـ يو تن زده کوونکی دې د ټولګي په وړاندې اصطلاح ګانې د معنا او جوړښت له مخې نورو ته بيان کړي.

٥ـ د جملې او ترکيب ترمنځ څه توپير موجود دی او په پښتو کې ترکيبونه په څو ډوله دي؟ دوه تنه زده کوونکي دې په خپله ګډه مرسته نورو زده کوونکو ته په دې اړه څرګندونې وکړي.

٦ ـ جمله له څو برخو څخه جوړه شوې ده؟ يو تن دې پرې خبرې وکړي.

## کورنی دنده

زده کوونکي دې په خپله خوښه يوه موضوع وټاکي. د هغې په ليکلو کې دې اصطلاح ګانې وکاروي. د ليکنې په پای کې دې يو شمېر اصطلاح ګانې راټولې کړي چې په ټولګي کې نه وي ويل شوي.



# پښتو قصيده: شيخ اسعد سوري



په پخوانيو ټولګيو کې مو د نظم او نثر په اړه معلومات تر لاسه کړي دي. نثر خپل جوړښت لري او نظم خپل. نظم هغه وينا ده چې وزن او قافيه ولري. مثنوي، بولـله (قصيده)، غزل، رباعي، قطعه او نور د نظم بڼې دي. دلته پر قصيدې، د هغې پر جوړښت او په پښتو کې د قصيدې پر مخينه غږېږو. تر دې د مخه چې قصيده وپېژنو، ښه به دا وي چې شيخ اسعد سوري وپېژنو چې په پښتو ادبياتو کې يې قصيده د لومړنۍ معلومې قصيدې په توګه پېژندل شوې ده. د قصيدې په اړه لږ معلومات لرو، هغه هم د پټې خزانې په واسطه تر موږ را رسېدلي دي.

ــ تاسو څه فکر کوئ چې د يوې قصيدې د بيتونو ډېر لږ شمېر به څو وي؟

پټه خزانه له "تاریخ سوري" څخه د "لرغوني پښتانه" د لیکوال، شیخ کټه په حواله لیکي چې اسعد سوري په غور کې استوګنه درلوده. هلته د سوري کورنۍ په دربار کې د درناوۍ وړ یو شاعر و. د پلار نوم یې محمد و. په ٤٢٥ هجري کال کې په بغني (د هلمند د زمینداور سیمه) کې مړ شو. نوموړی ډېر ښه شاعر و. کله چې سلطان محمود غزنوي پر غور برید وکړ او له امیر محمد سوري سره یې جګړه ونښته، نو امیر یې د آهنګرانو په سیمه کې کلابند کړ. دغه مهال شیخ اسعد هم د هغه ځای په کوټ نومې سیمه کې و. سلطان محمود غزنوي امیر محمد سوري له ځانه سره بندي غزني ته یوړ. امیر محمد سوري له ډېره غیرته په بند کې مړ شو. شیخ اسعد سوري چې د امیرمحمد سوري دوست و، د هغه پر مرګ یوه بولـله وویله.

بولـله یا قصیده هغه نظم ته وایي چې تر یوې مطلع لاندې ویل کېږي. د ټولو دویمو نیم بیتیو قافیه یې د لومړي بیت له قافیې سره یوشان وي. اوږده او ډول ډول مضامین پکې راوړل کېږي. د بیتونو شمېر یې له شپاړسو څخه نیولې بیا تر دوو سوو پورې رسېږي. عموما د ستاینې، ویرنې، پند او نور اوږده موضوعات پکې بیانېږي. قصیده معمولاً په تشبیب پیلېږي. تشبیب د قصیدې لومړني بیتونه دي چې د قصیدې له اصلي موضوع څخه بهر د بلې موضوع په اړه؛ په ځانګړې ډول د ځوانۍ او په هغې پورې د اړوند حالت، لکه د مینې او طبیعت په ستاینې کې ویل کېږي. له تشبیب وروسته په قصیده کې اصلي موضوع په تفصیل سره بیانېږي. قصیده پښتو ادبیاتو ته له اسلام وروسته راغله او ډېر ژر د پوخوالي کچې ته ورسېده.

د پټې خزانې له پیدا کېدو د مخه د پښتو د لومړۍ قصیدې په اړه چاته سمه پته نه وه. ددغه مهم اثر له پیداکېدو سره سم د پښتو یو شمېر غوره قصیدې تر لاسه شوې. په دې لړ کې د پښتو معلومه لومړۍ قصیده هم تر لاسه شوه. دغه قصیده د شیخ اسعد سوري قصیده وه چې د امیرمحمد سوري په مړینه یې ویلې وه. دا هم څرګنده شوه چې په غور او غزني کې د دې پېر موجودو شاعرانو قصیدې ویلې وې او دغه فن مخ په بشپړتیا او پوخوالي روان و. له بلې خوا قصیده یوه داسې وسیله وه چې د پاچاهانو د خوښۍ غونډې پرې تودې شوې

وې. د خپګان او غم پر مهال هم ویل کېدې او دومره سوز او ګداز به په کې موجود و چې د کاڼو زړونه به یې هم ویلې کول. کله ناکله به یې ځوانان د جګړې په ډګر کې مبارزې ته هم رابلل.

د تاریخ په اوږدو کې قصیدې ډېر پړاوونه وهلي دي. د پښتو قصیده هم همداسې درواخلئ چې د موضوع له مخې یې بېل بېل اړخونه لرلي دي.

د غوریانو او سوریانو په پېر کې که څه هم پښتو قصیده د پاچاهانو د مدحې اوستاینې په خدمت کې ولاړه وه، خو بیا یې هم پښه له پښتني چاپېریاله بهر ایښې نه ده. د شیخ اسعد سوري قصیده له هغو قصیدو څخه ده چې ساری یې موږ په هغه وخت کې نه وینو. د غوریانو په پېر کې پښتو قصیدې په فني او ادبي لحاظ د خپل وخت په قصیدو کې لوړ دریځ خپل کړی دی.

د شیخ اسعد سوري په قصیده کې ملي او ټولنیز احساسات له ورایه بریښي.

نوموړې قصیده په لاندې ډول ده:

د فلک له چارو څه وکړم کوکار
زمولوي هر ګل چې خاندي په بهار
هر غوټول چې په بیدیا غوړېده وکا
رېژوي یې پاڼې کاندي نار په نار*
ډېر مخونه د فلک څپېړه شنه کا
ډېر سرونه کا تر خاورو لاندې زار
د واکمن له سره خول پرېباسي مړ سي
د بې وزلو وینې توی کاندي خونخوار
چې له برمه یې زمري رېږي ځنګلو کې
له اوکوبه یې ډاري تېرو جبار
هم یې غشی سکڼې ډال د ژوبلورو

رستمان ځني ځغلا کاندي په ډار
چې يې ملاوې نه کرېږي په غښتليو
دا فلک پر وکا څه کاري ګذار؟
په يوه ګردښت يې پرېباسي له برمه
نه يې غشي، نه ليندۍ وي نه يې سپار
څه تېرى څه ظلم کاندې اې فلکه!
ستا له لاسه نه دى هېڅ ګل بې له خار
په ويرژلو، لور نه کړې په زړه کراړيه
پر نتليو اوروې د غم ناتار
هېڅ روغى مې په زړه نسته ستا له ځوره
بېلوې په ژړا ژړ مين له يار
له تېريو * دې اوښې خاخې له اوريځو
چينې ژاړې په ورټ ورټ ستا له شنار
نه به لاس واخلې له ځوره نه به لورې
نه به ملا کړې، له بې وزلو له ترار
نه به زړه وسوځوې په هېچا باندې
نه به پرېوزې له ګردښته له مدار
نه به وصل کړې مين له بل مينه
نه به درملې ټپونه د افګار
ستا له لاسه دي پراته ژوبل زګېروي کا
هر پلو ته ټپي زړونه په ځار ځار
کله غوځې کاندې مراندې د زړګيو
کله تېر باسې وګړې هوښيار
کله ټکى واچوې پر نازوليو
کله څېرې کړې ګرېوان د نمنځي چار

کله غورځوي واکمن له پلازونو
کله کښېنوي په خاورو کې بادار
زموږ پر زړونو دې نن بيا يو غشی وويشت
ودې ژوبلله په دې غشي هزار
پر سوريو باندې وير پرېوت له پاسه
محمد واکمن چې ولاړی په بل دار
يو وار سو اسير په لاس د ميرخمنو
انتقال يې وکړ قبر له بل وار
په سماو* يې ودان أهنګران و
په ټېکنه و پر درست جهان اوڅار
د محمود د ژوبلورو په لاس کښېوت
چې غزنه ته يې باتلی په تلوار
ننګياليو لره قيد مړينه ده ځکه:
سه * يې والوتله هسك ته پر دې لار
تر نړۍ يې غوره خاورې، هديره کا
د زمريو په بېړيو *کله وي څوار
په دې وير د غور وګړي تور نمري * سول
په دې وير، رڼا تياره سوله د ښار
ګوره څاڅي رڼې اوښې له دې غرونو
داکړونګی * ساندې لي په شور هار
نه هغه زرغا د غرونو، د بېديا ده
نه د زرکيو په مسا دی کتهار
نه غټول بيا زرغونېږي په لاښونو
نه بامي بيا مسېده کا په کهسار
نه له غرجه بيا راځي کاروان د مشکو

نه رادرومي غور ته بیا جوړې د شار
د پسرلي اوره تودې اوښې توینه
مرغلرې به نیسان نه کړي نثار
دا په څه چې (محمد) ولاړ له نړیه
په ویرنه یې سو غور ټول سوګوار
نه ښکارېږي هغه سور د سور په لټو
نه ځلېږي هغه لمر پر دې دیار
چې به نجلیو په نڅا پکې خندله
چې به پېغلو کا اتڼ کتار کتار
هغه غور په ویر ناتار د واکمن کښېوست
هغه غور سو د جاندم غوندې سور اړ
لاس دې مات سه ای فلکه چې دې وکا
محمد غوندې زمرى د مړینې ښکار
شین زړګى فلکه! ولې لا ولاړ یې؟
اې د غور غرونو په څه نسوځ غبار؟
مځکې! ولې په رېږدلو نه پرېوزې؟
لاندې باندې سه! چې ورك سي دا شعار:
چې زمري غوندې واکمن ځي له جهانه
چې څوك نه کړي په نړۍ باندې قرار
سخ په تا ای (محمده) د غور لمر وې!
په نړۍ به نه وي ستا د عدل سار
ته پر ننګه وې ولاړ په ننګ کې مړ سوې
هم پر ننګه دې په ننګه کا ځان جار
که سوري دې په تګ ویر کاندي ویرمن سول
هم به ویاړي ستا په نوم ستا په ټبار

پـه جـنـت کـې دې وه تــون زمـــوږ واکـمـنـه
هـــم پـــه تـــا دې وي ډېـــر لـــور د غـفـار

* * *

*نار په نار: په اصل کې په همدې بڼه دی. ښايي تار په تار وي.

*تېری: تېری، تعدی، ظلم او تجاوز

* سماو: سم، درست، راست

* سه: ساه

* بېړيو: زولنې

* تور نمري: سياه پوش

*کړونګی: ځړوبی

سور: خوشحالي

سور: د قوم نوم دی

سار: ساری، بېلګه

د متن لنډيز:

قصيده د پښتو د نظم د نورو ډولونو په څېر په پښتو کې اوږده مخينه لري. قصيده معمولاً په تشبيب پيلېږي. تشبيب د قصيدې لومړنې بيتونه دي چې د قصيدې له اصلي موضوع څخه بهر د بلې موضوع په اړه د طبيعت د ستاينې او يا هغې ته  پر ورته موضوع  پيلېږي.  قصيده پښتو ادبياتو ته له اسلام وروسته راغله او ډېر ژر د پوخوالي کچې ته ورسېده. د ادبي تاريخ له پاڼو څرګندېږي چې قصيده په پښتو کې پخوا هم موجوده وه او د خپل پوخوالي پوړۍ يې وهلې وې. د شيخ اسعد سوري قصيده د پښتو قصيدو په تاريخ کې د زيات ارزښت وړ ده او له ادبي پلوه هم يوه پخه بولله ګڼل کېږي. دا قصيده شيخ اسعد سوري د امير محمد سوري د مړينې په وير کې ويلې ده.



## فعالیتونه

۱ـ زده کوونکي دې پر څو ډلو وویشل شي. لومړۍ ډله دې د ډلې د غړو په مرسته په پښتو کې د غزل، دویمه ډله د مثنوي، دریمه د رباعي او څلورمه د قصیدې په اړه معلومات له بېلګو سره ولیکي. بیا دې نورو ټولګیوالو ته واوروي.

۲ـ یو تن زده کوونکی دې د ټولګي مخې ته راشي، د تشبیب په اړه دې څرګندونې وکړي او بېلګه دې په متن کې د قصیدې له مخې ولولي.

۳ـ یو بل زده کوونکی دې ټولګي مخې ته راشي او د شیخ اسعد سوري د قصیدې د متن اصلي ویرنه دې ولولي او د هغې په اړه دې څرګندونې وکړي.

٤ـ زده کوونکي دې په پورته قصیده کې د شیخ اسعد سوري ملي او ټولنیز احساسات په ګوته کړي او د هغو په اړه دې خبرې وکړي.

٥ـ زده کوونکي دې په پورته متن کې اسمي ترکیبونه وګوري او ودې یې لیکي.

٦ـ د ترکیب او جملې پر توپیر دې څو تنه زده کوونکي خبرې وکړي. نور دې ورته غوږ کېږدي.



## کورنی دنده

زده کوونکي دې پښتو ادبیاتو ته د قصیدې او د نظم د نورو بڼو د راننوتلو بهیر په ډېر لنډ ډول وڅېړي او د یوې لنډې مقالې په توګه دې په بله ورځ په ټولګي کې په وار ولولي.

د دروغجن سزا دا ده چې څوک یې پر رښتیا خبره هم باور نه کوي.



# چاپېریال ساتنه

د اوسېدو او ژوند ځای ته چاپېریال وايي. ټول ژوندي موجودات د خپلې استوګنې لپاره یو ځای ټاکي. انسانان په کلو، بانډو او ښارونو کې اوسېږي. هر شی چې د دوی د اوسېدو پرځای په یو ډول نه یو ډول اغېز کوي، چاپېریال ورته وايي. الوتونکي، څاروي، د سیندونو او سمندرونو ژوي، ځنګلي او د دښتو او بیدیاوو ژوي ټول خپل خپل ځانته د اوسیدو چاپېریال لري. په ځینو حالتونو کې یو شمېر ژوو د خپل پوستکي رنګ د اړونده چاپېریال له رنګ سره یوشان کړی. موخه یې له زیان څخه د ځان ژغورل او پایښت دی. تر ټولو اړینه داده چې چاپېریال باید د ژوند ټولې اړتیاوې په داسې توګه تامین کړي چې موجودیت او دوام یې له ګواښ سره مخامخ نشي.
څنګه کولای شو د خپل چاپېریال اړین توکي د پای ته رسېدو له ګواښ څخه وژغورو؟

د ژوند کولو ځای ته چاپېریال وایي. په دې کې د یوه ژوندي موجود شاوخوا ټول شیان او توکي چې په یو ډول نه یو ډول یې ژوند تراغېز لاندې راولي، شامل دي. د انسان د ژوند په چاپېریال کې د هغه کور، د کور شاوخوا، اوبه، ځمکه، چمنونه، ونې، باغونه، سیندونه، غرونه، ځنګلونه او داسې نور شامل دي. دا هر یو په خپل وار د انسان او بل هر ژوندي موجود پر ژوند په مستقیم او غیر مستقیم ډول اغېز کوي.

د هرې ورځې په تېرېدو د انسانانو شمېر زیاتېږي. د تازه معلوماتو (۱۳۸۸ لمریز کال) له مخې په منځني ډول هره ورځ شاوخوا درې سوه درې پنځوس زره ماشومان زېږي او شاوخوا ۱٤٦ زره خلک مري. په دې توګه هره ورځ د نړۍ په نفوس کې له دوو سوو زرو څخه زیات زیاتوالی رامنځ ته کېږي. د نفوسو دا زیاتوالی پر چاپېریال اغېز کوي؛ هغوی د استوګنې ځای ته اړتیا لري؛ اوبه اوخواړه غواړي؛ جامې، پوښاک او درمل غواړي؛ ښوونې او روزنې ته اړتیا لري او په سلګونو نورې داسې اړتیاوې. په داسې حال کې چې د چاپېریال یو شمېر توکي د نفوسو په څېر نه زیاتېږي او موجوده اندازه یې د لګښت له مخې پای ته رسېږي، لکه: ونې او ځنګلونه (که ووهل شي او نور یې پر ځای کښېنښول شي)، کانې زېرمې، کرنیزې ځمکې او نور.

په چاپېریال کې ژوندي او ناژوندي موجودات شته. ژوندي موجودات په خپل منځ او همدارنګه له ناژوندیو موجوداتو، لکه: خاورې، اوبو، ګازونو او نورو سره متقابلې اړیکې لري. دا اړیکې د ژوند چاپېریال ته ډېرې اړینې دي. د ایکو سیستم دا اړیکې څېړي. هغه سیستم چې د ایکو سیستم (Eco System) څېړي، د ایکولوژۍ (Ecology) په نامه یادیږي.

د چاپېریال د پاک ساتنې موضوع په روانې پېړۍ کې د ټولو اوسیدونکو د اندېښنې ور ګرځېدلې. زموږ د ژوند چاپېریال ورځ په ورځ ککړېږي او د ژوندیو موجوداتو ژوند له ګواښ سره مخ کوي. ننني نړۍ د بشري تمدن د پرمختګ، د معاصرې ټکنالوژۍ پر پراختیا او د نفوسو د زیاتوالي له امله په ځمکې او هوا کې د ککړتیا له ستونزو سره مخامخ شوې ده. د روغتیایي ریوټونو له مخې د همدې ککړتیا له امله د نړۍ د نفوسو په سلو کې شل ښلا بېلې ناروغۍ ګواښوي. جګړې او په جګړو کې د مختلفو وسلو کارول یو بل ګواښ دی چې چاپېریال ککړوي. په جګړو کې د ځنګلونو له منځه وړل، د کروندو او اوبو زهري کول او داسې نور هغه کارونه دي چې د ژوند کړۍ تنګوي او ستونزې زېږوي.

د اوسني پېر یوه بله ډېره مهمه ستونزه د اوبو ککړتیا ده. دا ستونزه د ټکنالوژۍ او صنایعو په

پرمختګ لا پسې پراخه شوې ده. د نوي صنعت لپاره د سکرو ډېرې او تېل انرژي توليدوي. د دې توکو زياته کارونه چاپېريال، په تېره بيا اوبه او ځمکه ککړوي.

کولای شو د باغونو، شنو سيمو، پارکونو او د سيل د ځايونو د جوړولو له لارې خپل چاپېريال خوندي کړو. د شنو سيمو جوړول ژوندي موجودات له ګواښ څخه ژغوري. ځنګلونه چې په خپله يوه ژوندۍ ټولنه ده، د چاپېريال عمده توکي دي. د ځنګلونو وهل او د ونو پرې کول، نه يوازې چاپېريال له ګواښ سره مخامخ کوي، بلکې په هغه کې د موجودو ژوو ژوند ته هم سترګواښ بلل کېږي.

د چاپېريال ساتنه د يو ځانګړي شخص، يا ټولنې او کومې موسسې کار نه دی. دا د هر چا دنده ده چې په خپل وار، له خپل نژدې چاپېريال، کور، څخه نيولې بيا د خپل ښار او پارکونو د پاکولو له لارې خپل چاپېريال ځانته ورغوي. د ونو کرل، د پارکونو جوړول، د ځنګلونو او په هغو کې د ژوو ساتل او پالنه، له اوبو څخه په ټاکلې اندازه ګټه اخيستل، د هغو توکو لږ کارول يا نه کارول چې لوګي يې هوا ککړوي او ډېرې نورې هغه لارې چارې دي چې هرڅوک کولای شي تر خپلې وسې پورې يې عملي کړي او په دې توګه د چاپېريال د ککړتيا مخه ونيسي.

د متن لنډيز:

هر هغه څه ته چاپېريال وايي چې زموږ شاوخوا ته پراته دي او موږ يې احاطه کړي يو؛ زموږ ژوند وربورې اړوند دی او زموږ د ژوند د دوام وسايل چمتو کوي. ټول ژوي که پر ځمکه دي، که په اوبو او يا د سمندرونو په تل کې، ټول غرونه، دښتې، ځنګلونه او دريابونه د ژوند د چاپېريال يوه برخه ده. په چاپېريال کې ټول شيان د تل لپاره موجود نه وي، يو څه يې د ورځني لګښت له مخې پای ته رسيږي او نه نوي کېږي. له دې امله بايد د هغې په لګښت کې پوره پام وشي او د راتلونکو نسلونو د ګټې اخيستلو لپاره پرېښودل شي. د دې ترڅنګ چې چاپېريال په بشري ژوندانه مستقيمې اغېزې لري، بايد په شعوري توګه هم په خپله په چاپېريال پام وکړو او هم د نورو پام هغې ته راواړوو. د استوګنې شاوخوا پاکه وساتو، نيالګي کښېنوو، ونې او ځنګلونه و نه وهو، مرغان، الوتونکي او کبان بېرحمانه ښکار نه کړو، موجود چمنونه او شنه ځايونه وساتو او نوي هغه جوړ کړو. څومره چې يو چاپېريال پاک، ښکلی او په زړه پورې وي، په هماغه اندازه ژوند نېکمرغه، آسان او روغ وي. روغ چاپېريال زموږ ستاسو ټولو د نېکمرغه ژوند ضامن دی.



## فعالیتونه

۱ــ چاپېريال څه ته وايي؟ څو تنه زده کوونکي دې په خپله خوښه د ټولګي مخې ته راشي او خپلې څرګندونې دې وړاندې کړي.

۲ ــ زده کوونکي دې په مناسبو ډلو ووېشل شي. هره ډله دې د چاپېريال د ارزښت او د هغې د پاکوالي په اړه خپل رغنده عملي نظرونه وليکي او د يو وړانديز په توګه دې چمتو کړي. بيا دې د ډلو استازي په ګډه هغه توحيد کړي او د يو بشپړ وړانديز په توګه دې وليکي او ټولګي ته دې ولولي.

۳ ــ دوه تنه زده کوونکي دې د ټولګي په وړاندې په چاپېريال کې د څو شيانو او توکو نمونه واخلي او څرګنده دې کړي چې له دغو توکو څخه څنګه ګټه واخيستل شي.

٤ــ ځنګلونه د چاپېريال په ښکلا او پايښت کې څه رول لري؟ يو تن زده کوونکی دې په دې اړه معلومات وړاندې کړي.

٥ــ په چاپېريال کې ژوندي او ناژوندي موجودات يو له بله څه اړيکې لري، دا اړيکې په چاپېريال څه اغېزه کوي؟ يو زده کوونکی دې په دې هکله رڼا واچوي او بل يو دې د ناژونديو موجوداتو نومونه واخلي او ودې وايي چې دا اړيکي کوم سيستم څېړي او څنګه؟

٦ ــ زده کوونکي دې په پورته متن کې صفت او موصوف په ګوته کړي او نورو زده کوونکو ته دې بيان کړي.



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د خپل کلي، ښار يا ښوونځي د چاپېريال د پاك ساتلو په اړه خپل وړانديزونه په منظمه توګه تنظيم او ترتيب کړي. په راتلونکي درسي ساعت کې دې خپل دغه وړانديزونه له نورو ټولګيوالو سره شريك کړي.

# د پښتو ادبیاتو دویمه تاریخي دوره



په مخکنیو ټولګیو کې مو پر ادبیاتو خبرې کړې دي. شفاهي یا ولسي ادبیات مو له لیکلو ادبیاتو څخه بېل کړي دي. شفاهي ادبیات د ټولنو له رامنځته کېدو سره سم رامنځ ته شوي دي. هره یوه ټولنه خپل دود، رسم و رواج او فرهنګ د ولسي ادبیاتو په هینداره کې نورو ته ورښیي. د شفاهي ادبیاتو پیل نشي څرګندېدای، خو لیکلي ادبیات هرو مرو له یو تاریخي پړاو سره تړاو لري. پښتو لیکلي ادبیات ډېر لرغوني دي. تاریخي پېښو، کوچېدنو، تاړاک، زېښناك او نیواک د هغې زیاتې بېلګې تر خاورو لاندې کړې دي. که موږ د لیکلو ادبیاتو په اړه خبرې کوو، نو باید کره لاسوندې یې ولرو چې له بده مرغه زیات شمېر یې په لاس کې نشته. بیا هم د لا سبې پېژندنې لپاره پښتو ادبیات په درېو دورو وېشل شوي دي؛ لرغونې دوره، منځنۍ یا کلاسیکه دوره او معاصره دوره. په لسم ټولګي کې مو د پښتو ادبیاتو په لرغونې دورې خبرې کړې دي. د معاصرې دورې په اړه به په دولسم ټولګي کې معلومات تر لاسه کړو. دلته د پښتو په منځنۍ یا دویمې تاریخي دورې غږېږو.

د پښتو ادبیاتو دویمه دوره چې د پښتو ادبیاتو د تاریخ منځنۍ دوره هم ورته ویلای شو، د لسمې هجري پیړۍ له نیمایي پیلېږي او د څوارلمسې هجري پېړۍ تر لومړیو دریو لسیزو پورې رارسیږي. د پښتو د ادبي تاریخ دویمه دوره له لومړۍ دورې څخه له هره پلوه توپیر لري. په دې دوره کې پښتو ادبیات د افغانستان، پښتونخوا او هند په سیمو کې له ځینو ملي، مذهبي او پښتني غورځنګونو سره په تړاو راټوکېږي او وده کوي. د سیمې د هغه مهال فرهنګي ادبي جریانونه پر پښتو ادبیاتو خپل اغېز ښندي او د همدغو جریانونو په پیروۍ په پښتو ادب کې ځانګړي سبکونه پیدا کېږي او خپل ځانګړي پیروان مومي.

ددې دورې یوه ستره ځانګړنه دا ده چې بشپړ او مکمل ادبي آثار یې زموږ په لاس کې دي.

په دې دورې پورې اړوند په سلګونو پښتو دېوانونه، په سلګونو کیسه ییز آثار او په زرګونو ولسي سندرې له موږ سره شته چې د پښتو د ادبي تاریخ د یوې سترې پانګې په توګه هر اړخیز بحثونه پرې کولای شو.

په دې دوره کې له ګاونډیو ژبو سره د پښتو ادبیاتو تړون هم پراختیا مومي. له عربي، فارسي او له همدې ژبو څخه پښتو او له پښتو څخه ځینو دغو ژبو ته د آثارو د راکړې ورکړې مسئله هم خپلو لوړو پړاوونو ته خیژي.

د پښتو د ادبي تاریخ دویمه دوره څو پړاوونه لري. په هر پړاو پورې اړوند آثار د ټوکېدو د شرایطو، خپلو خصوصیاتو او فکري هنري اغېز د منلو له امله یو اوړد واټن رانغاړي. د دې خبرو معنا دا ده چې کله موږ پر روښانیانو بحث کوو، دا بحث له بایزید روښان څخه پیلیږي چې د فرهنګي هڅو وخت یې د لسمې هجري پېړۍ دویمه نیمایي ښوول شوې او په قادر داد ورکزي پای ته رسیدلی دی. دا کسان بیا د دولسمې پېړۍ خلک دي. حال داچې له بایزید او د ده له پیروانو سره په یوه وخت اخوند درویزه هم پښتو ته مخه کوي. په پښتو آثار لیکي او ژباړي او ځینې نور کسان په ادبي هڅو لګیا دي.

دا دوره له روښاني غورځنګه پیل او همداسې پسې په اخوند درویزه او د ده پر پیروانو، بیا د خوشحال خټک،رحمان بابا، هوتکیانو او د احمدشاهي پېر تر نورو فکري او فرهنګي بهیرونو رارسیږي.

د لسمې او يوولسمې هجري پيړيو په ترڅ کې د روښانيانو، اخوند درويزه او د ده د سبک پلويانو او هم د همدې زمانې د ځينومبلغو او صوفي شاعرانو، ناظمانو او ليکوالو آثار د خپلو شکلي جوړښتونو له پلوه ډېره سره نژدې يو رنګي لري. موضوعات يې هم تر ډېره سره يو شی دي.

که څه هم اخوند درويزه له روښانيانو سره مخالفت درلود، ده او د ده ځينو پلويانو د روښانيانو پر ضد ليکنې هم کړي دي، خو هغه ليکنې له ځينو شخصي او نظرياتي اختلافاتو رازيږيدلي دي. دغسې اختلافي ليکنې د بېلتانه د يوې داسې کرښې په توګه نشو منلای چې د دواړو ډلو آثار د ځانګړنې له مخې سره بېل کړو. د روښانيانو او اخوند درويزه دواړو په آثارو کې عرفان (تصوف) او د عرفاني لارو د بنسټونو په څېلولو سره ځان الهي ذات ته نژدې کول، د نفس تزکيه، د زړه سپېڅلتيا، د اسلام د مقدس دين د اساساتو بيان، د اسلام د مقدس دين د لارښوونو په رڼا کې د خلکو اخلاقي روزنه، پندونه، نصايح او نور دې ته ورته مطالب د دې درې واړو ډلو له خوا په ژباړل شوو، ليکل شوو او پنځېدلو اثارو کې ليدل کېږي. د اهدافو همدا ورته والی موږ اړ باسي چې د دغو درې واړو ډلو اثار په يوه پړاو کې و څېړو او د دويمې ادبي دورې د لومړي پړاو نوم پرې کېږدو.

د دويمې دورې په دې پړاو کې د ادبي آثارو د زياتو نسخو او ډېرو برخو شتون موږ پر دې باوري کوي چې دغه مهال په پښتنو کې د لوستو او زده کړو خلکو شمېر يو څه ډېر شوی او خلکو د کتاب ساتنې او کتاب لرنې له دود سره مينه ښوده. حال دا چې تر دې پړاو د مخه د لومړۍ دورې د آثارو ځينې دګوتو په شمېر بېلګې له موږ سره دي چې هغه هم ځينو تذکرو تر موږ رارسولي دي.

ددې پړاو آثار له شکلي پلوه نيم منظوم، منظوم اومنثور دي. د نيم منظوم، مسجع يا مقفی نثر د ليکلو دود همدا مهال د بايزيد له خوا پيل شو.

ددې پړاو په منثوروآثاروکې پر نورو سربيره د علي محمد مخلص او ارزاني روښاني رسالې د يادولو وړ دي. د دې رسالو نثرونه سجع نه لري او د هغه وخت له شرايطو سره سم روان

نثر بلل کېدای شي. د اخوند میا داد په نثرونو کې د ده "نورنامه" نیم منظوم سبک پالي، خو په دیوان کې يې منثورې ټوټې د کلمو په پای کې قافيې ته پام کوي.

که د دې پړاو آثار د هنري ځانګړتیاوو له مخې د لومړۍ دورې له ځينو بېلګوسره پرتله کړو، نو د پرمختيا څرک پکې نه لګيږي. بايد ووايو چې د دې دورې زياتره اثار عرفاني ديني او اخلاقي مسايلو ته بېل شوي دي. په ځينووختونو کې ددغسې اهدافو لرونکي شاعران او ليکوال د نظم د شعريت خواته ډېر پام نه کوي او هيله يې دا وي چې د خلکو د زده کړې په موخه خپل آثار په منظومه بڼه وړاندې کړي.

په دې پړاو کې عرفان د يوه مسلك په توګه پښتو ادبياتو ته لار پيدا کوي او د عرفاني آثارو څرکونه چې د پښتو د ادبي تاريخ د لومړۍ دورې له خورو ورو پاړکو رااېستل کېدای شي، په دې پړاو کې په مکتبي بڼه خپل وزرونه غوړوي. د دې پړاو په اشعارو کې غزلې، قصيدې، رباعي، مثنوي، قطعې، مربع او مخمس اشعار پيدا کېږي. په دې شعري ځيلونو کې مربع او مخمس داسې شعري ځانګې دي چې په لومړۍ ادبي دوره کې يې څرك نشو لګولای. په دې پړاو کې ددغو دريو نوو ځانګو شتون د پښتو په شعري ځيلونو کې د پراختيا يو څرك په لاس راکوي. په دې پړاو کې پښتنې فرهنګ له اسلامي فرهنګ سره خورا زيات نژدې شو او د اسلامي فرهنګ ډېرو اساسي مسايلو ته يې لاره پيدا کړه. ډېرې اسلامي، دينې او عربي فرهنګ ته ورته کيسې پښتو ته واوښتلې. د پښتو کوم آثار چې موږ له لومړۍ دورې څخه په لاس کې لرو، دا ډول ځانګړتياوې نه لري. ځينې مهم ديني او فقهي آثار په پښتو ژباړل شوي دي، لکه خلاصه کيداني، قصيده برديه، قصيده سرياني، نورنامه، خلاصة الاسلام او نور. د دې ترڅنګ د پارسي او عربي ژبو له عمده اسلامي آثارو څخه په ګټه د ديني او شرعي اساساتو ځينې مهم بيانوونکي کتابونه په پښتو کې په تحقيقي ډول وليکل شول، لکه: مخزن، نافع المسلمين، فوايد شريعت او نور.

ددې پړاو زياتره ليکوال او شاعران له څو ژبو، لکه: پارسي، پښتو، عربي او هندي سره آشنا دي. په دغو ليکوالو کې ځينو پر پښتو سربيره په هندي، پارسي او عربي ژبو هم آثار ليکلي

دي چې له نورو فرهنګونو سره د پښتنو لیکوالو تړاو څیني څرګندیږي. د پښتو ادبي تاریخ د دویمې دورې لومړی پړاو د پورته ځانګړتیاوو په لړلو سره یوه بل پړاو ته ننوزي.
ارزاني خویشکی، واصل روښاني، خواجه محمد، کریمداد بنګښ، علي محمد مخلص، دولت لوانی، قادر داد، اخوند درویزه، محمد حلیم، عبدالسلام، اخوند احمد، بابوجان، شیخ محمد سعید او په لسګونو نور د دې پړاو شاعران او لیکوال بلل کیږي.

## په دویمې دورې کې د خوشحال خټک او د ده د پیروانو زرین پړاو:

خوشحال خټک نه یوازې د خپل وخت یو ټولنیز، سیاسي شخصیت او بریالی سالار و، بلکې دی د پښتو ژبې یو داسې شاعر او لیکوال و چې که ووایو د پښتو ادب تاریخ د ده له نامه او اثارو پرته نیمګړی دی، نو زیاتی به نه وي. خوشحال خټک پښتو ژبې او ادب ته په نظم او نثر کې هغه څه ورکړل چې تر ده د مخه او وروسته یې ښایي ساری ډېر لږ وګورو.
خوشحال خان د خپل هنر او خپلې ژبې د لفظي او معنوي بډایتوب لپاره د ګاونډیو ژبو له ادبي زمینو څخه پوره ګټه واخیسته. پښتو شعر یې د شکل او شعري ژانرونو له پلوه بډای کړ او په موضوعي لحاظ یې داسې څه پرې نه ښودل چې شعر یې په کې نه وي ویلی. ده د پښتو شعر د مضمون په لحاظ خورا بډای کړ او په پښتو شعر کې تر ده د مخه بیان شوو موضوعګانو ترڅنګه ډېر نوي او رنګارنګ معلومات راوړل. د خوشحال خټک په آثارو کې د هغه د شعرونو د کلیاتو، فراقنامې، دستارنامې، بازنامې (منثوره او منظومه)، فالنامې، فضل نامې، طب نامې، بیاض، ځنځیری او سواتنامې نومونه یادولای شو.
خوشحال خان د خپلو پښتو منظومو او منثورو اثارو د تالیف په برخه کې د خپلې زمانې د برلاسي ادبي جریان تر اغېز لاندې رانغی. د خپل لوړ هنري او فکري ورتیا په زور یې یوه نوې لاره غوره کړه چې نه د ده د زمانې روښاني اثار او نه د نورو عارفانو او شاعرانو اثار دغسې ځانګړتیاوې لري.

د خوشحال په پېر کې پښتو شعر ډېر پراخه او هر اړخيز شو. د ختيځې شاعرۍ څه ناڅه ټولو ډولونو د دې سبک د رامنځته کوونکي او د دې سبک د پيروانو په اشعارو کې وده وموندله. د دې سبک د پيروانو په اثارو کې رندانه، صوفيانه، اخلاقي، فلسفي، فکاهي، غندنه، ستاينه او نورې موضوعګانې شته. يوه عمده ځانګړنه يې داده چې پښتني روحيه، پښتني احساسات او د پښتو خپل کړه وړه په کې بيان شوي دي. په دې سبک کې ټولنيز نقد ته ځای ورکړ شوی دی. په يو شمېر اشعارو کې ټولنه، خلک، برلاسی ټولنيز، سياسي نظام او فرهنګي بهير په څرګندو الفاظو کې نقد شوی دی. د تخيل، نزاکت او انځور جوړونې له پلوه ځينې ابتکاري ځانګړنې لري. د خوشحال د سبک پيروان د شعر ترڅنګ نثر هم ليکي. د نثر ليکنې لار يې هم خپلې ځانګړنې لري. په دې سبک کې يو شمېر نورې ځانګړنې هم شته چې د ده د مخه پړاو کې يې څرک نه ليدل کېږي.

د پښتو د ادبي تاريخ په دويمه دوره کې د خوشحال خټک، د ده د کورنۍ هستونې او د ده د سبک د پيروانو آثار موږ ته د يو نوي پړاو څرک په لاس راکوي. په دې پړاو کې پښتوشعر په ټولو شعري بڼو، لکه: غزل، قصيده، رباعي، مثنوي، مربع، مخمس، مسدس، مثمن، معشر، ترکيب بند، ترجيع بند، قطعه او نورو راڅرګند شو. پښتو شعر د مضمون له پلوه بشپړ شو. ټولنيزې بېلابېلې موضوع ګانې پکې راوړل شوې. تاريخي پېښې، له هېواد سره مينه، د پښتو او پښتونولۍ احساسات پکې رامنځ ته شوي چې په تېرو پړاوونو کې يې څرک نه لګېده. په دې پړاو کې د پښتو ادب ځينې اړخونه د پښتنو له ټولنيز ژوند څخه رنګ اخلي. د پښتو غزل د ختيځ غزل له پېژندنې سره سم ټولې هنري بنيګڼې خپلې کړې او پښتو بوللې هم د غوري دورې د بوللو رنګ او خوند ومومند. د ختيځ ادب داستانونو هم پښتو ادب ته لار پيدا کړه. د پارسي او عربي ځيني اثار په پښتو وژباړل شول.

خوشحال خټک د دغو لوړو ځانګړنو لرونکي سبک رامنځ ته کوونکی دی. د ده د کورنۍ او يو شمېر نورو شاعرانو ددغه سبک پيروي کړې ده. اشرف خان هجري، عبدالقادر

خټک، سکندر خان خټک، صدرخان خټک، ګوهر خان خټک، بي بي حلیمه خټکه، افضل خان خټک، قلندر، اشرف خلیل او یو شمېر نور د خوشحال خان خټک د سبک پیروان دي.

## ددې پړاو بل مخکښ عبدالرحمان بابا و

لکه چې د مخه مو وویل، یوولسمه پېړۍ د پښتو ادبیاتو د ودې او پراختیا لپاره یوه مناسبه پېړۍ وه. د پښتو ډېر شاعران په دې پېړۍ کې وزېږېدل، لوی شول په پښتو یې لیکنې وکړې او شعرونه یې وویل. که موږ د یوولسمې پېړۍ په بهیر کې د پښتو رامنځته شوي اثار له پامه تېر کړو، نو راته څرګنده به شي، په دې پېړۍ کې داسې آثار رامنځته شوي چې د سیمې له ادبي اثارو سره پرتله کېدای شي. په یوولسمه پېړۍ کې د راپورته شوو شاعرانو په ډله کې یو هم عبدالرحمن مومند و چې پښتانه له ډېرې مینې او زیاتې عقېدې ورته (بابا) وايي او په پښتني ولسونو کې د رحمان بابا په نامه مشهور دی. رحمان بابا د یو ځانګړي سبک خاوند دی. د ده سبک د خپلو ځانګړتیاوو له مخې په ولس او فرهنګي حلقو کې ډېر شهرت او محبوبیت وموند او د دولسمې، دیارلسمې او څوارلسمي پېړۍ شاعران په ده پسې روان شول. د رحمان بابا شعر د خپل ځانګړي هنري او ښکلاییز جوړښت او انساني محتوا له مخې خپل خاص خصوصیتونه لري او په پښتو ادب کې د یو نوي شعري سبک خاوند شاعر دی. د رحمان بابا سبک پېچلتیا نه لري، ډېر طبیعي او ساده دی. د شعر د الفاظو په ټاکلو کې زیار ایستل شوی دی؛ د شعر د خوند او رنګ لپاره یې ډېر ښکلي، خو ساده او عام فهمه الفاظ غوره کړي دي. د واقعیتونو بیان ته زیات پام کېده. اخلاقي، عرفاني او نور ټولنیز مسایل پکې راغلي. د رحمان بابا سبک په ټولو پښتنو کې دومره ومنل شو چې د ده د زمانې او بیا په راوروسته دوو، درېو پېړیو کې له افغانستان، پښتونخوا، بلوچستان او په هندوستان سربېره ان په بخارا او ماوراءالنهر کې ځینو اوسیدونکو پښتنو شاعرانو د ده سبک منلی و.

په دې پړاو کې لسګونه پښتانه شاعران رامنځ ته شول چې د شعرونو پنځه دیوانونه یې درلودل. ځینو یې له دیوانونو سربېره منظومې رسالې هم لرلې. په دې پړاو کې قصیدې، غزل، رباعي، قطعې، مربع، مخمس، مسدس، مسبع، معشر، ترکیب بند او ترجیع بند زیات وکارول شول. په دې پړاو کې د اخلاقو او نصیحتونو د بیان خواته ډېر پام کېده. په دې پړاو کې غزل ډېر پیاوړی شو او ان د پښتو د شعر د پراختیا او ودې پړاو یې بللی شو. د دې پړاو شاعران زیاتره عالمان وو. د خپلې سیمې د ژبو له ادبیاتو سره یې آشنایي درلوده. له خپلې مورنۍ ژبې پرته یې په پارسي او هندي هم شاعري کوله.

د رحمان بابا د سبک په پیروانو کې د یونس خیبري، مهین خلیل، معزالله مومند، اخوند ګدا، حافظ الپوري، نجیب سربندي، عبدالعظیم سواتي، میا نعیم متي زي او یو شمېر نورو نومونه یادولای شو.

## هوتکیان او د دې دورې بل پړاو:

په کندهار کې د پښتنو د ملي دولت جوړېدل او په شاهي دربار کې د پښتو د ودې د زمینې رامنځته کېدا د دویمې دورې په راوروسته پړاو کې ټاکلی دریځ لري. کندهار د خپل جغرافیایي موقعیت له مخې د لسمې او یوولسمې پېړۍ په جریان کې د صفوي او د هند د مغولي امپراتورۍ تر منځ واقع شوی و. دواړو امپراتوریو په دې ستراتیژیکې افغاني سیمې کې خپل ټاکلي اهداف درلودل. د دولسمې پېړۍ د دویمې لسیزې په وروستیو کې ګرګین د کندهار صفوي حکمران و. نوموړي په دې سیمې کې داسې ظلمونه او ناروا وې کولې چې خلك یې تر پوزې رسولي وو.

میرویس نیکه د ګرګین په وړاندې د ولسي پاڅون له لارې د یو ملي افغاني دولت بنسټ کېښود. د هوتکو د پاچاهۍ په ولکه کې دغه مهال په سلګونو لیکوالو اثار لیکلي او شعرونه یې ویلي دي. د پښتو او فارسۍ ژبو یو شمېر آثار دغه مهال منځته راغلي دي چې د ځینوهغو په ایجاد او تألیف کې هوتکي پاچاهانو لاس درلودلی دی. په دې توګه د هېواد د فرهنګي تاریخ په لیکلو کې د دغې کورنۍ نوم لوړ ځای لري. د میرویس نیکه مور، نازو

انا، زوی، شاه حسین او لور، زینبه د پښتو ژبې شاعران وو. ریدی خان، حافظ نور محمد، داود هوتک، د پټې خزانې لیکوال محمد هوتک، یار محمد هوتک، ملا محمد یونس توخی، بابوجان، ملا نور محمد غلجی او په لسګونو نور د دې دورې وتلي شاعران او لیکوال دي.

په دې مهال کې زیات شمېر پښتو آثار او تألیفات رامنځ ته شوي دي. پټه خزانه د دې مهال یو ارزښتمن کتاب دی چې د دربو خزانو په درلودلو د لرغونې او د هغه د خپل مهال زیات شمېر پښتانه نارینه او ښځینه لیکوال او شاعران او د هغوی د لیکنو بېلګې تر موږه رارسوي.

د پښتو د تحریري تاریخي حماسو لیکل همدا د هوتکو د پاچهی په دوران پورې اړه لري. حماسې د ادبیاتو یو موضوعي ډول دی. په دې ډول ادبي اثارو کې رزمي اوجنګي مسایل په حکایتي او داستاني ډول بیانیږي. په دې دوره کې یو شمېر حماسې ایجاد شوي دي. "محمودنامه" او "جګړه د محمود افغان او نیول د اصفهان" په هغو کې ډېرې مشهورې دي. د دې حماسو لیکوال په ترتیب سره ریدي خان مومند او محمد امین سرېربکړی دي. شاه حسین هوتک د محمود نامې په لیکلو ریدي خان مومند ته زر طلاوې انعام ورکړې وې.

د هوتکو د پاچهی په دوران کې ادبي دربار رامنځ ته شو او په هغې کې د عالمانو پر راټولولو او د آثارو پر تألیف او ایجاد سربېره د انعام ورکول هم پیل شول. د همدې کورنۍ په هڅونې ډېر شمېر آثار په پښتو ژبه تالیف شوي دي. تحریري حماسي اثار په پښتو کې دغه مهال رامنځته شوي. که څه هم په پخوانیو ادبیاتو کې د حماسې ځینې مذهبي نمونې شته، خو تاریخي بشپړې حماسې د همدې پاچهی د کارنامو په اړوند رامنځته شوي دي. په دې دوران کې د پښتو ولسي ادب ډېرې ښکلې بېلګې رامنځ ته شوي چې زموږ د ولسي شعر برخه یې بډایه کړې ده. همدارنګه په دې پړاو کې د پښتو د لیکلي ادب ځینې موضوعات له فولکلور څخه اخیستل شوي دي، لکه د "شها او ګلان" نکل او یا د "اوبښ او سوې" کیسه چې د پښتو ولسي شعر په قالب کې یې نظم کړي دي. د دې پړاو په اثارو کې د هېوادپالنې

روحیه د خوشحال ختټک د پړاو په پرتله ښه څرګنده شوې ده.
که له پورته یادونو ورتېر شو په دې پړاو کې ادبیاتو د مخکنیو دورو په پرتله د پام وړ کومه پراختیا نه ده موندلې. د دې مهال شاعرانو په هماغو قالبونو کې شعرونه ویلي دي چې ترمخه په کې پښتنو شاعرانو ښې تجربې لرلې. د دې پړاو په اړوندو آثارو کې د نثر کتابونه شته چې لیکنې یې پخې، خوږې او د کندهار له ګړدود سره سمې وې.

د یوولسمې هجري پېړۍ په پیل او د دولسمې پېړۍ په لومړیوکې په هند کې د فارسي ژبې یو شمېر اوسیدونکو شاعرانو هغه نوي شعر ته لار ومونده چې د لسمې هجري پېړۍ په پیل کې رامنځ ته شوی و. دې سبک د هندي سبک په نامه شهرت وموند. هندي سبک ځینې ځانګړتیاوې لرلې. پېچلتیا، په شعر کې تازه فکر او نوې موضوع ګانې ځایول، ایجاز یا په لنډو خبرو کې د اوږد مطلب ادا کول، د دقیقو تشبیهاتو او ځانګړو استعارو کارول، په شعرونو کې د متلونو او محاورو راوړل، خاص لحن او اهنګ، د ادبي صنایعو پالنه، د مینې پر محور د غزلو چورلېدل، اغراق او مبالغه او داسې یو لړ نورې ځانګړتیاوې د دې سبک عمده خصوصیات وو. دې سبک د یوولسمې پېړۍ په شاوخوا کې پښتونخوا او د افغانستان سیمو ته هم لاره ومونده. دغه مهال یو پښتون شاعر د خپلو هم مهالو او متقدمینو شاعرانو په لار نه ولاړ، بلکې نوو مضمونونو او هنري لارو ته یې پام واړاوه. همدغه مهال هندي سبک پښتو ادب ته لار پیدا کړه. نوموړی شاعر عبدالحمید مومند و. حمید د شعر ویلو ډېره ښه وړتیا درلوده او د تازه مضمون په پیداکولو ښه ماهر و.
که څه هم په پښتو شاعرۍ کې حمید مومند د هندي سبک د شاعرۍ بنسټ ایښودونکی دی، خو هنر یې بیا دا و چې د هندي سبک بنسټونه یې په اعتدالي بڼه خپل کړي وو. د ده شاعري د پښتو ژبې لفظي او معنوي ځانګړتیاوې نه دي بایللي. ډېرو پښتنو شاعرانو د حمید د سبک پیروي کړې ده.
پر پښتو ادبیاتو د هندي سبک د اغېز د بحث پر مهال جوتیږي چې په پښتو کې ددغه

سبک پیروي په پښتونخوا کې پیل شوه، په کندهار کې یې وده وکړه او په هند کې یو شمېر اوسېدونکو پښتنو شاعرانو لوړې پوړۍ ته ورسوله او اغېزو یې تر معاصرې دورې پورې پایښت وموند. حسین، قلندر، خانګل خلیل، کامګار خټک، دوست محمد، علي خان مامنزی، حمدالله کاکاخېل، سلیم، محمدي صاحبزاده، بېدل هشنغری او تر هغوی راوروسته کاظم خان شیدا، محمد بیاض، نورمحمد نوري افغان او یو شمېر نور په پښتو ادب کې د هندي سبک پیروان او نژدې هر یوېي د دیوان خاوند شاعر بللی شي.

په دولسمه هجري پېړۍ کې د اوسني افغانستان په سیمو کې د پښتو د ادبي حلقو تر منځ هم د هندي سبک پیروي دود شوې وه. سید غلام احمد یا غلام جان پاچا، میرزا حنان بارکزی، صدیق اخوندزاده، سردار مهردل خان مشرقي، سردار غلام محمدخان طرزي، ملا محمد اکبر، ملا صالح محمد داوی، عبدالله هوتک او نور د دې سبک پیروان وو او زیاترو یې پر همدې سبک شعرونه ویلي دي.

په پښتو ادبیاتو کې د هندي سبک موسس عبدالحمید مومند او بشپړوونکی یې کاظم خان شیدا و. دوی دواړه د هندي سبک په مشرانو کې شمېرل کېږي. د دې سبک پیرو شاعران ټول غزل ویونکي شاعران وو. ځینو پکې مثنوي هم ویلې. د اشعارو موضوع یې زیاتره د مینې او عشق بیان ته ځانګړې شوې وه، خو اخلاقي، ټولنیز او تاریخي پېښې پکې هم بیان شوې وې. د دې سبک د پیرو شاعرانو د آثارو عمده ځانګړنه د دوی د شعر هنري اړخ دی. د دې سبک زیاترو پښتنو شاعرانو ښکلي، د هنري او شعري ښکلاوو په ګاڼه پسوللي شعرونه ویلي دي.

د احمد شاه بابا په کورنۍ کې د پښتو ادب پالنه، د دویمې ادبي دورې د پای او د معاصرو ادبیاتو د ټوکېدو پړاو:

احمد شاه بابا له خپلو سیاسي، ټولنیزو او ملي خدمتونو سربېره د خپل هېواد فرهنګ لپاره هم نه هېرېدونکي خدمتونه کړي دي. د پښتو او فارسي ژبو شاعران او لیکوال یې روزلي دي. خپله هم شاعر و، په پښتو ژبه ترې د شعرونو یو دېوان پاتې دی. د کورنۍ له غړو څخه

یې تیمورشاه او شاه شجاع په پښتو شاعري کړې ده. په دربار کې یې وکیل الدوله عبدالله جان پوپلزی هم د پښتو ژبې شاعر و.

پیر محمد کاکړ د احمد شاه بابا د دربار یو بل شاعر و. پیر محمد کاکړ د پښتو د ډېرو ښو شاعرانو او لویو عالمانو په لیکه کې ولاړ سړی و. نوموړی د پښتو ژبې یو دیوان لري. د هغه دیوان د هنري ارزښتونو له پلوه د مننې وړ دی. انځورونه یې ښکلي، بلاغت او فصاحت یې لوړ معیار لري. پر دې سربېره پیر محمد کاکړ د "معرفة الافغاني" په نامه د پښتو ژبې د زده‌کړې یو کتاب لیکلی دی چې په خپل ډول کې د پښتو گرامر لومړنی کتاب دی او د پښتونثر ښې نمونې پکې خوندي دي. پیر محمد کاکړ د ځانگړي سبک خاوند و چې د عشق هنري احساسات یې درلودل او همدارنگه تشبیهات او استعاراتو یې طبیعي رنگ درلود، عبارتونه او الفاظ یې روان او ژبه یې راکښونکې وه. پر نورو شاعرانو سربېره، شمس الدین کاکړ د هغه د سبک د پیروانو له ډلې څخه و. حافظ گل محمد مرغزی د احمدشاهي دوران یوبل شاعر و. نوموړی له احمدشاه بابا سره په لښکري سفرونو کې ملگری و. مرغزي احمدشاهي شاهنامه لیکلې ده. په دې شاهنامه کې د احمدشاه بابا د ۱۶ کلونو ځینې پېښې بیان شوي دي. په دې پېر کې یو شمېر نور شاعران هم تېر شوي چې حبیب الله، ملا علم اپریدی، ابوالقاسم او یو شمېر نور یې د پښتو دیوانونو خاوندان وو.

د احمد شاهي پېر لیکل شوي او ژباړل شوي ادبي منثور او منظوم آثار د شکل او موضوع له پلوه د مخکنیو دورو له اثارو سره کوم خاص توپیر نه لري. په دې پېر کې د یادونې وړ ادبي کار د "احمدشاهي شاهنامې" په نامه د یوې بشپړې حماسې لیکل دي. تر دې د مخه کومه بشپړه حماسه موجوده نه وه. د دې پېر په آثارو کې د وخت د پاچا، احمدشاه بابا د ستاینې موضوع ده. دا خبره د دې څرگندوونکې ده چې پښتانه د مخه پردیو حکومتونو ډېر ځپلي او ځورولي وو. احمدشاهي پېر د پښتو ادب د ودې او پراختیا لپاره وړ او مناسب شرایط چمتو کړي دي. په همدې پېر کې نوو او ازادۍ ښونکو مفکورو شعر او ادب ته لاره پرانیسته او په دې ډول د معاصرې دورې پیل ته لار هواره شوه.

د ادبي تاریخ دورې په کرونولوژیک ډول د پیړیو یا کلونو یا د سیاسي رژیمونو او پاچاهیو د رامنځته کېدو یا رانسکورېدو له مخې نه تنظیمیږي، بلکې دا دورې د ادبي آثارو او ادبي پدیدو د ودې او پراختیا شرایطو او هم د دغه پدیدو شکلي او موضوعي ځانګړتیاوو ته په پاملرنه تنظیمیږي. له دې امله دا اړینه او شوني نه ده چې یوه ادبي دوره دې پای ته ورسیږي او سمدلاسه دې بله ورپسې پیل شي. یوه ادبي دوره لا د خپلې ودې او پراختیا پړاوونه وهي چې د بلې دورې زړي راشنه کېږي او ورو ورو وده کوي، تر هغه چې یوه ادبي تاریخي دوره پای ته ورسوي او بله دوره پیل شي.

د متن لنډیز:

د پښتو ادبیاتو د تاریخ دویمه دوره چې منځنۍ دوره هم ورته ویلای شو، د لسمې هجري پېړۍ له نیمایي پیلیږي او د خوارلسمې هجري پیړۍ تر لومړیو دریو لسیزو پورې رارسیږي.

په دې دورې پورې اړوند په سلګونو پښتودېوانونه، په سلګونو کیسه ییز آثار او په زرګونو ولسي سندرې له موږ سره شته چې د پښتو د ادبي تاریخ د یوې ستړې پانګې په توګه هر اړخیز بحثونه پرې کولای شو. دا دوره له روښاني غورځنګه پیل اوهمداسې پسې پر اخوند درویزه او د ده په پیروانو، خوشحال خټک، رحمان بابا، د هوتکو او احمد شاهي پېر تر نورو فکري او فرهنګي بهیرونو رارسیږي، ترهغه چې دا دوره پای ته ورسیږي او ځای یې دریمه ادبي (معاصره) دوره ونیسي.

د دې دورې د لومړي پړاو په منثورو آثارو کې ځانګړې رسالې شته. پر نورو سربیره یوه د علي محمد مخلص او بله هم د ارزاني روښاني ده. د دې رسالو نثرونه سجع نه لري او د هغه وخت له شرایطو سره سم روان نثر بلل کېږي.

په دویمې دورې کې بل زرین ادبي پړاو د خوشحال خټک او د ده د پیروانو دی. خوشحال خان خټک نه یوازې د خپل وخت یو تولنیز، سیاسي شخصیت او بریالی سالار و، بلکې دی د پښتو ژبې یو داسې شاعر او لیکوال و چې که ووایو د پښتو ادب تاریخ د ده له نامه او اثارو پرته نیمګړی دی، نو زیاتی به نه وي. خوشحال خټک پښتو ژبې او ادب ته په نظم او نثر کې هغه څه ورکړل چې تر ده د مخه او وروسته به یې ښایي ساری ډېر لږ وګورو. خوشحال خان د خپل هنر او خپلې ژبې د لفظي او معنوي بډایتوب لپاره د ګاونډیو ژبو له ادبي زمینو څخه

پوره ګټه واخیسته. پښتو شعر یې د شکل او شعري ژانرونو له پلوه بډای کړ او په موضوعي لحاظ یې داسې څه پرې نه ښودل چې شعر یې په کې نه وي ویلی. ده پښتو شعر د مضمون په لحاظ خورا بډای کړ او په پښتو شعر کې تر ده د مخه بیان شوو موضوعګانو ترځنګه ډېر نوي او رنګارنګ معلومات راوړل. د خوشحال خټک په پېر کې پښتو شعر ډېر ارت شو.
د ختیزې شاعرۍ څه ناڅه ټولو ډولونو د دې سبک د رامنځ ته کوونکي او د دې سبک د پیروانو په اشعارو کې وده وموندله. د خوشحال د سبک پیروان د شعر ترڅنګ نثر هم لیکي. د نثر لیکنې لار یې هم خپلې ځانګړنې لري. په دې سبک کې یو شمېر نورې ځانګړنې هم شته چې د ده د مخه پړاو کې یې څرک نه لیدل کېږي.
رحمان بابا د دویمې ادبي تاریخي دورې د یو بل پړاو مخکښ و. د ده سبک د خپلو ځانګړتیاوو له مخې په ولس او فرهنګي حلقو کې ډېر شهرت او محبوبیت وموند او د دولسمې، دیارلسمې او څوارلسمې پېړۍ شاعران په ده پسې روان شول. د رحمان بابا شعر د خپل ځانګړي هنري او ښکلاییز جوړښت او انساني محتوا له مخې خپل خاص خصوصیتونه لري او په پښتو ادب کې د یو نوي شعري سبک خاوند شاعر دی. د رحمان بابا سبک پېچلتیا نه لري، ډېر طبیعي او ساده دی. د شعر د الفاظو په ټاکلو کې زیار ایستل شوی دی؛ د شعر د خوند او رنګ لپاره یې ډېر ښکلي، خو ساده او عام فهمه الفاظ غوره کړي دي. د واقعیتونو بیان ته زیات پام کېده. اخلاقي، عرفاني او نور ټولنیز مسایل په کې راغلي. د رحمان بابا سبک په ټولو پښتنو کې دومره ومنل شو چې د ده د زمانې او بیا په راوروسته دوو، دریو پېړیو کې په افغانستان، پښتونخوا، بلوچستان او په هندوستان سربېره ان په بخارا او ماوراء النهر کې ځینو اوسېدونکو پښتنو شاعرانو د ده سبک منلی و.
په کندهار کې د پښتنو د ملي دولت جوړېدل او په شاهي دربار کې د پښتو د ودې د زمینې رامنځته کېدا د دویمې دورې په راوروسته پېرونو کې ټاکلی دریځ لري. د هوتکو د پاچاهۍ په پېر کې دغه مهال په سلګونو لیکوالو آثار لیکلي او شعرونه یې ویلي دي. د پښتو او فارسي ژبو یو شمېر آثار دغه مهال منځ ته راغلي دي چې د ځینوهغو په ایجاد او تألیف کې هوتکي پاچهانو لاس درلودلی دی. په دې توګه د هېواد د فرهنګي تاریخ په لیکلو کې ددغه کورنۍ نوم لوړ ځای لري. دغه مهال زیات شمېر پښتو آثار او تألیفات رامنځ ته شوي دي. پټه خزانه د دې مهال یو ارزښتمن کتاب دی چې د دریو خزانو په درلودلو لرغوني او د هغه مهال زیات شمېر پښتانه نارینه او ښځینه لیکوال او شاعران او د هغوی د لیکنو بېلګې تر موږه رارسوي.
د پښتو د تحریري تاریخي حماسو لیکل همدا د هوتکو د پاچاهۍ په دوران پورې اړه لري.
د یوولسمې هجري پېړۍ په پیل او د دولسمې پېړۍ په لومړیوکې په هند کې د فارسي ژبې

يو شمېر اوسېدونکو شاعرانو هغه نوي شعر ته لار موندله چې د لسمې هجري پېړۍ په پيل کې رامنځ ته شوی و. دې سبک د هندي سبک په نامه شهرت موند. هندي سبک ځينې ځانګړتياوې لرلې. پېچلتيا، په شعر کې تازه فکر او نوې موضوعګانې ځايول، ايجاز يا په لنډو خبرو کې د اوږد مطلب اداکول، د دقيقو تشبيهاتو او ځانګړو استعارو کارول، په شعرونو کې د متلونو او محاورو راوړل، خاص لحن او اهنګ، د ادبي صنايعو پالنه، د مينې پر محور د غزلو چورلېدل، اغراق او مبالغه او داسې يو لړ نورې ځانګړتياوې د دې سبک عمده ځانګړتياوې وې. دې سبک د يوولسمې پېړۍ په شاوخوا کې پښتونخوا او د افغانستان سيمو ته هم لاره موندله.
احمدشاه بابا له خپلو سياسي، ټولنيزو او ملي خدمتونو سربېره د خپل هېواد د فرهنګ لپاره هم نه هېرېدونکي خدمتونه کړي دي. د پښتو او فارسي ژبو شاعران او ليکوال يې روزلي دي. خپله هم شاعر و، په پښتو ژبه ترې د شعرونو يو دېوان پاتې دی. د کورنۍ له غړو څخه يې تيمورشاه او شاه شجاع په پښتو شاعري کړې ده. په دربار کې يې وکيل الدوله عبدالله جان پوپلزی هم د پښتو ژبې شاعر و. پير محمد کاکړ د احمدشاه بابا د دربار يو بل شاعر و. پير محمد کاکړ د پښتو د ډېرو ښو شاعرانو او لويو عالمانو په ليکه کې ولاړ سړی و. نوموړی د پښتو ژبې يو ديوان لري. د هغه ديوان د هنري ارزښتونو له پلوه هم د منلو وړ دی. انځورونه يې ښکلي دي، بلاغت او فصاحت يې لوړ معيار لري. پر دې سربېره پير محمد کاکړ د "معرفة الافغاني" په نامه د پښتو ژبې د زده کړې يو کتاب ليکلی دی چې په خپل ډول کې د پښتو لومړنی ګرامر دی او د پښتو نثر ښې نمونې پکې خوندي دي.

## فعاليتونه

۱ــ پښتو ادبياتو کومې تاريخي دورې تر شا پرېښې دي؟ دوه تنه زده کوونکي دې د خپلو معلوماتو له مخې د هغو په اړه معلومات وړاندې کړي.

۲ ــ زده کوونکي دې د هغوی د شمېر له مخې په څلورو ډلو ووېشل شي. لومړۍ ډله دې د پښتو ادبياتو د دويمې تاريخي دورې د لومړي پړاو، دويمه ډله دې د همدې دورې د دويم پړاو، دريمه ډله دې د دريم پړاو او څلورمه ډله دې څلورم پړاو د ځانګړتياوو په اړه خپل نظرونه روښانه کړي. د هرې ډلې استازی دې هغه راغونډ او د ټولګي په وړاندې دې ولولي. د ټولو ډلو نظريات دې توحيد کړي او زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې وليکي.

۳_ پنځه تنه زده کوونکي دې د ټولګي مخې ته راشي. هر یو دې په خپل وار د متن یوه برخه ولولي. متن دې په ورو او روښانه ټکو کې ولولي او داسې دې تمثیل کړي چې ګوندې له راډیو او تلویزیون څخه خبرونه یا کوم ادبي متن لولي. نور زده کوونکي دې هغوی ته غوږ کېږدي. د هغوی ښې برخې دې وستايي، نیمګړتیاوې دې په ګوته او په عمومي خبرو اترو کې دې برخه واخلي.

٤_ څو تنه زده کوونکي دې په خپله خوښه د ټولګي مخې ته راشي او د خپلې خوښې د یوې موضوع په اړه دې د دوه – درې دقیقو لپاره خبرې وکړي.

٥_ د پټې خزانې ستر ارزښت په څه شي کې نغښتی دی؟ دوه تنه زده کوونکي دې د یو بل په مرسته پرې د نورو ټولګیوالو په وړاندې رڼا واچوي.

٦_ پښتو ادبیاتو ته د خوشحال خان خټک او د هغه د کورنۍ د اهمیت او د هغوی د کارنامو په اړه دې څو تنه زده کوونکي د نورو په وړاندې خبرې وکړي.

٧_ په ولس کې د رحمان بابا د محبوبیت په اړه دې دوه تنه زده کوونکي خپل نظرونه بیان کړي. د رحمان بابا د سبک ځینې ځانګړتیاوې دې په ګوته کړي.

٨_ که زده کوونکي د مېرمن نازو او مېرمن زینب د شعرونو په اړه معلومات لري، د ټولګي له نورو زده کوونکو سره دې شریک کړي.

٩_ دوه تنه زده کوونکي دې پښتوادب ته د هوتکیانو د خدمتونو په اړه رڼا واچوي.

١٠_ حماسه څه ډول شعر دی؟ زده کوونکي دې خبرې پرې وکړي.

١١_ یو شمېر زده کوونکي دې په احمد شاهي پېر کې د پښتو ژبې د ودې او پراختیا په اړه نورو زده کوونکو ته معلومات ورکړي.

١٢_ زده کوونکي دې په څو ډلو ووېشل شي. هره ډله دې د دویمې ادبي دورې بېل بېل پړاوونه وڅېړي، د هر پړاو ځانګړتیاوې، مشهور تألیفات د هر پړاو اړوند لیکوال او شاعران دې له نومونو سره ولیکي او د هرې ډلې استازی دې په ټولګي کې نورو ته بیان کړي.

## کورنۍ دنده

د ځانګړتیاوو او په دې پړاوونو کې د رامنځ ته شوو لیکنو او شعرونو په اړه یوه مقاله ولیکي او په بله ورځ دې په ټولګي کې د نورو په وړاندې ولولي.





# په ټولنیز ژوند کې د ښځو ونډه








ټولنه له افرادو جوړه شوې ده. کورنۍ لومړنۍ انساني ټولنه ده. یوه کورنۍ له مور، پلار اواولادونو څخه عبارت ده. د ښځو له شتون پرته کورنۍ شتون نه لري. له کورنیو ټولنه جوړیږي. په ټولنې کې ښځې او نارینه، دواړه شته. له یوه پرته او د بل په شتون ټولنه بشپړه نه ده. په ټولنې کې ښځې او نارینه یوله بل سره داسې اوبدل شوي دي چې د یو له نشتوالي پرته بل نیمگړی دی. همدا راز نارینه اوښځې لکه د یو مرغه دوې وزرې دي. که یو مرغه په یو وزر الوتنه نشي کولای، یوه ټولنه هم د بشپړوالي لپاره نارینه او ښځو ته یو شان اړتیا لري.

د ښځې له شتون پرته به یوه کورنۍ او ټولنه څنگه وي؟

ښځې د ټولنې نیمايي برخه ده. ارزښت یې له نارینه وو سره برابر دی. د نړۍ پرمختګ د ښځو له برکته دی. د هر بریالي نارینه تر شا یوه ښځه شتون لري. وايي: "ښځه په یو لاس زانګو او په بل جهان زنګوي." ښځه د کور ډیوه ده؛ ښځه مور ده؛ ښځه د نارینه سلاکاره ده؛ ښځه روغتیاپاله ده؛ ښځه د مینې او عاطفې جوهر دی. لنډه داچې ښځه د نارینه روح دی. څنګه چې انسان له روح پرته ژوند نشي کولای؛ همداسې له ښځې پرته د نارینه ژوند نیمګړی او له رنځ او کړاو څخه ډک دی.

زموږ په ګران هېواد کې ښځې له پامه غورځېدلي دي. د تاریخ په اوږدو کې هغه د محرومیت او مظلومیت یوه بېلګه پاتې شوې ده. له ښځو څخه د یو جنس په توګه کار اخیستل شوی، نه د یو انسان او بشري موجود په توګه. دلته ښځې آن له ډېرو لومړنیو حقونو څخه بې برخې شوې دي. د دې لامل دا دی چې افغانستان یوه سنتي، ترلې او قبیلوي ټولنه ده چې هر څه په کې د وروسته پاتې دود او دستور تر سیورې لاندې راغلي دي. په دې توګه د دې نامنلو وروسته پاتي دودونو، رسم او رواجونو لومړنی ښکار ښځې دي. له بلې خوا د افغانستان په تاریخ کې د پرله پسې جګړو او ناخوالو له امله ښځو ډېر زیانونه ګاللي دي. ښځه کونډه شوې؛ ښځه بوره شوې؛ ښځه وراره شوې؛ ښځه بې پلاره شوې. که هر څه غم او کړاو په نارینه راغلی، ښځو تر هرچا د مخه او ترهر چا زیات هغه ګاللی دی. د هرې جګړې لومړۍ قرباني ښځه وه.

له دې ټولو ناخوالو سره سره ښځه نه ده تسلیم شوې. ښځو اتلولۍ ښودلي او خپل شهامت یې له لاسه نه دی ورکړی. پر هېواد د پردو د یرغل پرمهال د نارینه وو تر څنګ درېدلي، هغوی ته یې په سنګر کې ډوډۍ، اوبه او کارتوس وړي. که نارینه ټپي شوی، د هغه پالنه یې کړې، له هغوی سره یې ورځنیو کارونو ته اوږه ورکړې او د دې ترڅنګ یې د خپلو اولادونو په روزلو کې هاند او هڅه کړې ده.

زموږ د هېواد د نارینه پوهانو، لیکوالو، شاعرانو او ملي شخصیتونو ترڅنګ ښځو په ټولو یادو برخو کې خپله وړتیا ښودلې او د تاریخ په پاڼو کې یې نومونه په زرینو کرښو لیکل

شوي دي. د دې نومياليو مېرمنو په ډله کې نازو انا، زرغونه انا، عايشه درانۍ، رابعه بلخي، بې بې نېکبخته، مېرمن الايي، غازي ادې، مېرمن عينو، د ميوند اتله ملالۍ، ناهيد او په سلگونو نورې شاملې دي.

نن، د تاريخ په دې پړاو کې ښځو خپل غړونه پورته کړي او په ټولنې کې د خپل دريځ د پياوړتيا لپاره هلې ځلې کوي. اوس ښځې کولای شي ولسمشرۍ ته ځانونه ونوموي؛ په کابينې کې گډون وکړي؛ د وزارتونو په لوړو څوکيو عملاً کار وکړي، ولسي جرگې او مشرانو جرگې ته ځانونه کانديد کړي او څوکۍ تر لاسه کړي؛ د هېواد د سرنوشت په ټاکلو کې له خپلو نارينه وروڼو سره په گډه پرېکړه وکړي او خپله رايه وکاروي؛ په ښوونځيو، پوهنتونونو او د هېواد د لوړوزده کړو په موسسو کې زده کړه او يا تدريس وکړي. لنډه داچې اوس ښځو ته تر پخوا زيات په ټولنې کې د خپل مسووليت اودندو د پرمخ وړلو لپاره زمينه برابره شوې ده.

لکه څنگه چې د مخه ورته گوته ونيول شوه، په هېواد کې د يو شمېر نامنلو دودونو له امله، په تېره بيا په کلو او بانډو کې، د ښځو ژوند  لا هماغسې تريخ دی. د خپلو نارينه خپلوانو د بدو دروند پيټی پراوړو وړي. د قومونو او کورنيو ترمنځ  د لانجو او ناندريو د له منځه وړلو لپاره د يوې متاع په څېر په بدو کې ورکول کېږي. په ځينو حالتونو کې له خپلې خوښې پرته واده ته اړايستل کېږي، د مېړه له مړينې وروسته د مېړه د کورنۍ له يو نارينه غړي سره، که زوړ وي يا کوچنی، بيا واده ته اړ ايستل کېږي. "کونډه د لېوره ده." له داسې ډېرو ناخوالو سره مخامخ دي چې هوارېدو ته يې زيات کار او زيار ته اړتيا شته. دا کار او زيار يوازې د ښځو او مېرمنو دنده نه ده، بايد نارينه تر ښځو زيات په دې لاره کې مخکښ رول ولوبوي چې په دې توگه په پای کې يوه هوسا، نېکمرغه، خوشحاله او له هره اړخه يوه انساني ټولنه جوړه شي.

د متن لنډيز:

ښځې په ټولنې کې له نارينه سره يو شان انساني حقونه لري. ښځې د ټولنې نيمه برخه جوړوي. که انسان له الوتونکي سره پرتله کړو، نو ښځې به يې وزرونه وي.

هېڅ الوتونکی له وزرونو پرته الوتلای نشي او نه په لاره تلای شي، په دې توګه له ښځو پرته ټولنه به یو ګوزڼ وهلي بدن ته پاتې وي چې نه په لاره تلای شي او نه په خوښۍ او خوشحالۍ پوهیږي. په ټولنې کې د ښځو د دریځ لوړولو لپاره ډېر کار او زیار ته اړتیا ده. داکار یوازې د ښځو دنده نه ده، نارینه باید تر ښځو زیات په دې لاره کې ګام واخلي او په دې توګه یوې نېکمرغه، سوکالې، پرمختللې او رغنده ټولنې ته لار پرانیزي.

## فعالیتونه

۱ــ لس تنه زده کوونکي دې په وار د ټولګي مخې ته راشي او په افغانستان کې دې د ښځو په وړاندې پرتې ستونزې په ګوته کړي. هڅه دې وکړي چې یو د بل خبرې تکرار نه کړي. پاتې زده کوونکي دې هغه ولیکي او توحید دې یې کړي.

۲ــ زده کوونکي دې په خپل ټولګي کې یوه غونډه تمثیل کړي. پورته موندل شوې ستونزې دې وګوري او د هغې د حل د لارو چارو په اړه دې خبرې وکړي. په پای کې دې خپلې موندنې د یو وړاندیز په توګه ولیکي او له ځانونو سره دې یادداشت کړي.

۳ــ پنځه تنه زده کوونکي دې د ټولګي په وړاندې په ټولنه کې د ښځو په دریځ او د هغوی په ارزښت خبرې وکړي. نور زده کوونکي دې په خبرو اترو کې برخه واخلي.

٤ــ زده کوونکي دې د پنځو دقیقو لپاره فکر وکړي چې ځوانان او نجونې څنګه د هېواد د راتلونکې لپاره کار کولای شي، پر کومو لارو چارو د یووالي او وحدت احساس رامنځته او پیاوړی کولای شي او څنګه ملي ډاډ پیاوړی کولای شي. وروسته دې څو تنه په خپله خوښه خپلې نظریې د نورو په وړاندې ووایي، خبرې اترې دې پرې وکړي او غوره وړاندیزونه دې راټول او ولیکل شي.



په خپل ښار، کلي او چاپېريال کې د ښځواو نجونو په وړاندې د ناروا چلندونو د عملي بېلګو په اړه يو مخ ليکنه وکړئ.

د "ښځو تعليم" او "د وطن مينه" له ځان سره ولولئ، پر مفهوم يې له نورو سره پرې خبرې وکړئ.

## د ښځو تعليم

ويلای شو که يو نارينه تعليم وکړي، نو يو کس تعليم يافته شي او که يوه زنانه تعليم وکړي، نو يوه کورنۍ تعليم يافته شي. نبي عليه السلام فرمايي، علم پر هر نارينه او زنانه فرض دی. زموږ پښتانه وايي موږ په ښځو نوکري نه کوو چې سبق پرې ووايو، خو دوی په دې نه دي پوهه چې سبق د سترګو بينايي ده. ناخوانده د خوانده په مخکې شمکور دی. لکه څنګه چې اوسپنه نکل شي او د هغې رنګ په پړق بدل شي، دغه شان په تعليم د ښځې ټولې کمزورۍ په طاقت بدلې شي. تعليم هغه ډال دی چې د انسانيت تحفظ کوي.

پوهان وايي د مور غېږ لومړۍ مدرسه ده، خو زه وايم چې دا مدرسه نه، بلکې يونيورسيټي (پوهنتون) ده. څنګه چې يونيورسيټي کې ټول علمونه سرته رسي، دغه شان د مور غېږ نه د تمامو علمونو ابتدا کېږي. دغه غېږ چې د علم په رڼا روښانه وي، نو د ماشوم ذهن به څومره ځلند وي او چې د جهالت په تيارو کې پټه وي، نو د ماشوم ذهن به څومره تت وي؟ "رفعت پروين"

### رفعت پروين

رفعت پروين د ۱۹٤۹م. کال د سپتمبر په مياشت کې په لره پښتونخوا کې زېږېدلې ده. لومړنۍ زده کړې يې په ښوونځي او لوړې زده کړې يې په خصوصي توګه له خپل پلار، حافظ محمد ادريس څخه کړې. رفعت پروين د پښتو او اردو ژبې ليکواله ده. ليک يې ډېر ساده دی، ښه معنا او مفهوم يې پکې ځای کړی دی. زياتې پښتو افسانې يې ليکلې دي.

## د وطن مینه

زمـوږ پـه ویـنـودي تـازه شـي وچ بوستان د وطن
یوځل دي ځار په معشوقي شي عاشقان د وطن

چـې تـرقـي د قـام وطــن د ځــان زیـنـت وګڼو
خـوب د غفلت نه دې بـیـدارې شي زنـان د وطن

نـسـلـونـه واړه آینده بــه مـحـبـان وي د قـام
کـه پـه بـیـدارو پـیـو لـوی شـي فـرزنـدان د وطن

خویندو د خدای لپاره پاځئ دادی وخت د همت
وګــورئ څـومـره دې قـومـونـه مـحـبـان د وطـن

ځای د تعلیم دی ستا جولۍ ای عزتمندې خورې!
لوی هغه زوی کړه چې سبا شي سخندان د وطــن

که په زېور د قومي عشق موږه سینګار جوړ که خپل
دا مـې یقین دی نــور بـه ونـشـي نقصان د وطن

د قــوم وطــن عــزت زمـــوږه د عــزت معـیـار دی
د سـر پـه بیه عـزت اخلـي شــاه زلـمـیـان د وطن

د غـافـل قــوم نــوم و نـښـان پـه دنـیـا نـه دی پاتې
تـاریـخ بـه هیر نـه کـړي هیڅیرې بـهـادران د وطن

ددې دنـیـا پـه مـخ هغه خلك ژونــدي دې پاتې
چې په کوښښ د چا ژونـدون شي جـاودان د وطن

اخـر تـرڅـو بـه بـې خبر د قـام لـه حـال یـو داسې
راځـــئ چـې وکـــړو لـړ د نـورو نـه پـرسـان د وطن

پــه کـومــه لار دي رسـیــدلــې قـافـلـې د وطـن
چـې مـوږ هــم بوځو پـه هغه لار کـــاروان د وطن

که د قـران پـاك په تعلیم مو کـړې سینې روښانه
وریـځـې د جهل بـه شـي لـرې لـه اسـمـان د وطن

سیده بشری بیګم

# ژمـنه



ښه خويونه زيات دي. هر يو يې پر خپل ځای په ټولنه کې د انسان پر دريځ او شخصيت اغېز لري. ښه خويونه سړی درنوي او سپک خويونه سړی سپکوي. اسلام موږ ته د ښو اخلاقو لارښوونه کړې ده. له بدو هغو څخه يې ژغورلي يو. درواغ ويل، د ژمنې سرته نه رسول او ښکنځلې کول د منافقت نښې دي. درواغ سړی خواروي، ښکنځلې د سړي شخصيت ته زيان رسوي او د ژمنې سرته نه رسول په ټولنې کې د انسان حيثيت، وقار او باور راټيټوي. انسان د ټولنيز مخلوق په توګه اړ دی په خپل ځان کې داسې نيک خويونه پيدا او وروزي چې د نورو په وړاندې د يو بشپړ انسان په توګه د احترام او درناوی وړ شي. اسلام د اخلاقو بشپړ دين دی او حضرت محمدﷺ د نيکو اخلاقو د تعميم او بشپړتيا لپاره مبعوث او ګومارل شوی و.

ــ په ټولنې کې د يوه رښتيني شخص دريځ څنګه وي؟

وايي چې يوه ورځ عمر بن خطاب د عدالت لپاره د خلکو په منځ کې ناست و. ناڅاپه يو ښکلی او ښايسته ځوان چې دوو نورو ظاهراً ښايسته ځوانانو له لاسونو نيولی و، خليفه ته راوست. عمر بن خطاب هغو ځوانانو ته وويل: "ځوان خوشې کړئ او ووايئ چې څه کيسه ده؟"

ځوانانو وويل: "موږ دوه ورونه يو. يو بوډا پلار مو درلود. په خپلو خلکو کې په نېکو اخلاقو او د مشرتابه په ټولوصفتونو مشهور و. يوه ورځ د تفريح لپاره خپل يو باغ ته تللی و. هلته دې ځوان وواژه. اوس له تا څخه غواړو چې زموږ په منځ کې د خدایﷻ حکم جاري کړې."

عمرؓ هغه ځوان ته په ترېو تندي وکتل او پوښتنه يې ترې وکړه: "ته څه ځواب لرې؟"

ځوان ډېر زړور او فصيح و. وموسکېد، په ډېره خوږه ژبه وغږېد. د عمرؓ ستاينه او درناوی يې وکړ. ويې ويل: "په خدای قسم چې رښتيا يې وويل خو زه هم خپله کيسه درته کوم. بيا ستاسې خوښه چې څه حکم کوئ! زه يو کليوالي عرب يم. وچکالي راغله. زه له خپلې کورنۍ او مال سره دلته راغلم. لاره مې په دې باغونو کې وه. ما اوښان درلودل. ماته ډېر گران وو. په هغوی کې د ښه نسل يوه ډېره ښايسته جونگۍ وه. د نورو اوښانو په ډلې کې به داسې برېښېده لکه پاچا چې د رعيت په منځ کې روان وي. جونگۍ د دې ځوانانو د پلار باغ ته مخه کړه. د هغه باغ پر دېوال باندې د يوې ونې څانگه پرته وه. جونگۍ هغې څانگې ته خوله واچوله او پرې يې کړه. ناڅاپه هغه بوډا سړی له باغه راووت. له ډېرې غوسې يې سترگې سرې اوښتې وې. په لاس کې يې يوه ډبره نيولې وه. د زمري په څېر غړومبېده. بيا يې جونگۍ پر ډبرې کلکه وويشته او مړه يې کړه. کله چې مې وليدل جونگۍ ولوېده، په سر کې مې اور بل شو. په هماغه ډبره مې شيخ پر سر وويشته چې جونگۍ يې پرې ويشتلې وه. د ډبرې په لگېدو بوډا سړي چيغې کړې او مړ شو. دا دوه ځوانان راورسېدل، زه يې ونيولم او تاته يې راوستم."

عمرؓ وويل: "اوس چې دې په خپلې گناه خوله وخوځوله، نو نشې خلاصېدای او بايد قصاص شې."

ځوان وویل: "زه پر هغه شي خوښ یم چې اسلامي شریعت ټاکلی وي، خو زه یو کوچنی ورور لرم. پلار مې له مړینې د مخه هغه ته ډېر مال ورکړی او د هغې د ساتنې دنده یې زما پر اوږو ایښې ده. ماته یې ویلي وو چې دا مال ستا د ورور دی. د هغې ساتنه پر تا فرض ده. ما هغه مال اخیستی او ښخ کړی مې دی. له ما پرته نور هیچا ته د هغې پته نه ده ښرگنده. که تاسې اوس زما د وژلو حکم وکړئ، هغه مال به ضایع شي او د هغې د زیان پړه به ستا پرغاړه وي. د آخرت پر ورځ چې پاک خدای ﷻ د بنده گانو ترمنځ عدالت کوي، هغه کوچنی به ستا غاړې ته لاس واچوي. که ماته درې ورځې مهلت راکړې، نو زه به د هغه کوچني ورور د مال سرپرستي بل چا ته ورکړم او بېرته به تاته راشم."

عمر رضي الله عنه په فکر کې ډوب شو او خپل سر یې څو شېبې ځوړند ونیو. بیا یې ځوان ته مخ واړاوه او ویې ویل: "ځوانه څوک دې ضامن کېږي؟" ځوان ناستو خلکو ته وکتل او د هغوی په ډلې کې یې ابوذر ته گوته ونیوه او ویې ویل: "دا سړی زما ضامن دی." عمر رضي الله عنه له ابوذر رضي الله عنه څخه پوښتنه وکړه: "یا ابوذره! د دې ځوان د راستنېدو ضمانت پر غاړې اخلې، که نه؟" ابوذر رضي الله عنه له لږ ځنډ وروسته وویل: "هو، تر درېو ورځو پورې یې ضمانت کوم." عمر رضي الله عنه ، ځوان رخصت کړ.

کله چې د مهلت وخت نژدې شو، د ځوان پته ونه لگېده. عمر رضي الله عنه له اصحابو سره ناست و. ابوذر رضي الله عنه هم و. هغه دوه ځوانان په غوسه شول او ویې ویل: "ای ابوذره، زموږ قاتل چېرته دی؟ هغه سړی چې تښتېدلی وي، څنگه به بېرته راشي؟" ابوذر رضي الله عنه وویل: "په خدای قسم، که د مهلت وخت پای ته ورسېږي او هغه ځوان رانشي، زه به خپل ضمانت وفا کوم او ځان درته سپارم." عمر رضي الله عنه وویل: "په خدای قسم، که هغه ځوان وځنډېږي، د شریعت له غوښتنو سره سم به د ابوذر رضي الله عنه په اړه حکم وکړم."

ددې خبرې په اورېدو د ابوذر رضي الله عنه په خاطر د حاضرینو په سترگو کې اوښکې راغلې. د غونډې حاضرینو یو تر بله په خبرو پیل وکړ او له ځوانانو څخه یې د دیت (خونبها) غوښتنه وکړه.

ځوانانو د چا خبره نه منله او له قصاص پرته په بل شي نه راضي کېدل. په دې وخت کې

خلکو د ابوذر ﵁ ارمان کاوه او ژړل یې. ناڅاپه هغه ځوان راښکاره شو او د عمر ﵁ په مخکې ودرېد. په داسې حال کې چې سا و تیګا او په تندي یې خولې روانې وې، په فصیحه ژبه یې پر عمر ﵁ سلام واچاوه.

وروسته یې عمر ﵁ ته وویل: "هغه کوچنی مې پر ترور وسپاره او د مال ځای ځایګی مې ورته وښوده. د ژمنې د سرته رسولو لپاره د اوړي په ګرمۍ کې په منډه راغلم."

خلك د ځوان له رښتینولۍ، پر وعدې د هغه د وفا او مرګ ته د راتګ له امله هیښ پاتې شول. ځینو حاضرینو وویل: "ځومره ښه کار او ځومره ښه ژمنه!" ځوان وویل: "آیا نه پوهیږئ چې له اجل خلاصی نشته. ما پر خپله ژمنه وفا وکړه چې ځوك ونه وایي په خلکو کې وفا له منځه تللې ده."

ابوذر ﵁ وویل: "په خدای قسم ای عمره، دا هلك مې نه پېژانده چې ځوك او د کوم ځای دی. تردې د مخه مې لیدلی هم نه و، خو کله چې یې په حاضرینو کې یوازې ماته مخ راواړاوه، نو ښه راته ونه برېښېده، رد یې کړم. مېړانې مې اجازه رانه کړه نهیلی یې کړم چې ځوك ونه وایي، مېړانه له نړۍ ورکه شوې ده."

هغه مهال هغو دوو ځوانانو وویل: "موږ د الله د رضا لپاره د خپل پلار وینه دې ځوان ته وبښله چې ځوك ونه وایي احسان په چاکې نشته." بیا عمر ﵁ هغو ځوانانو ته مخ واړاوه او ویې ویل: "د پلار خونبها له بیت المال څخه واخلئ."

ځوانانو وویل: "موږ د الله ﷻ د رضا لپاره هغه ته د خپل پلار وینه وبښله او له هغه تېر شوو. د دنیا د مال تمه نه لرو!"

د متن لنډیز:

ښه اوښک اخلاق د انسان ګاڼه ده. په انسان کې داسې یو لړ صفتونه شته چې انساني جوهر یې بولي. صداقت، رښتینولي، پر وعده وفا، دروغ نه ویل، مېړانه، پت ساتل، له خیانت ځان لیرې ساتل، نېکه اوخوږه وینا او په سلګونه داسې نور هغه صفتونه دي

چې له انسانه انسان جوړوي. دروغ ویل په ټولنې کې د انسان وقار راټیټوي. که یو ځل څوک په دروغو مشهور شو، نو بیا یې پر رښتیاوو هم څوک باور نه کوي. یو شمېر اخلاق فردي دي، زیان او ګټه یې یوازې یو فرد ته رسیږي؛ خو یو شمېر نور بیا ټولنیز اړخ لري؛ د ټولنې بنسټ جوړوي او له ټولنیزو ارزښتونو څخه ګنل کېږي. وګورئ، په پورته کیسه کې پر ژمنې د یو ځوان وفا څومره ښیګڼې رامنځ ته کړې، هم یې ځوان له هرو مرو مرګ څخه وژغوره او هم یې انساني جوهر په ګوته کړ. که چېرته له لومړي هغې یې اوږې خالي شوی وای او پرې عمل نه وای شوی، نو د مېړانې او احسان په څېر ټولنیزو ارزښتونو ته یې زیان رساوه.

## فعالیتونه

۱ـ د پورته کیسې پیغام څه شی دی؟ درې تنه زده کوونکي دې هغه د ټولګي په وړاندې روښانه کړي.

۲ـ درې تنه زده کوونکي دې یو ځای د ټولګي مخې ته راشي. هر یو دې په وار له هغو درېو دلیلونو وفا، مېړانې او احسان څخه د یو په اړه خپل معلومات وړاندې کړي چې له مرګ څخه د هغه ځوان د بچېدو لامل شول.

۳ـ دوه تنه زده کوونکي دې د ټولګي مخې ته راشي او په خپله ژبه دې پورته کیسه ووایي. بیا دې د هغې روزنیز اړخ ته وګوري او نورو ته دې روښانه کړي.

٤ـ په یوې ټولنه کې دې د ښو اخلاقو په اړه خو تنه زده کوونکي خپل نظر روښانه کړي.

پر وعدې وفا څه گټه لري؟ په ټولنې کې د انسان اعتبار او شخصيت ته څومره ارزښت لري؟ د کومو کارونو په اړه ژمنه کولای شو؟ په دې اړه يوه مقاله وليکئ او په بله ورځ يې نورو ته واوروئ.

زده کوونکي دې داکيسه ولولي اوپند دې ترې واخلي:

"وايي په يوې لوېې، بې سره او سامانه دښتې کې يو سړی د اس پر سپرلۍ تېرېده. څه گوري چې له ودانۍ اوکلو بانډو لېرې د بې اوبو او سوځوونکې دښتې په منځ کې يو ړوند ځوان په لاره روان دی. د آس والا پرې زړه سوځي او آس ورته دروي. له ځان سره يې پر اس سپروي او درومي. په يو ځای کې ړوند ځوان له اس والا څخه غواړي چې يوازې دی پر آس پاتې شي، ځکه د هغه پر ويناکله پر آس سپور شوی نه و او سترې شوی و. زړه سواند سړی يې هم ورسره مني او له آس څخه کوزېږي. د زړه سواند سړي له کښته کېدو سره سم ړوند ځوان اس پر متروکه وهي او په چټکۍ ځغلي. اس والا پرې غږکوي او ورته وايي: ((ځوانه، پام کوه داکيسه په ودانۍ او ښارکې چاته ونه کړې، که نه نو بيا به څوك له چا سره ښېگڼه او زړه سوی نه کوي!))

په دښتې کې ولې د اس څښتن هغه ځوان ته وويل چې د اس د تښتولو کيسه چاته ونه کړې؟ زده کوونکي دې په خپل وار پرې خبرې وکړي.

ابن سينا وايي:

د خپل نفس معلم او د خپل وجدان شاگرد واوسه.



# د پښتو ليکنښو سمه کارونه





په هره ژبه کې د خبرو په مهال انسان کله دمه کوي او درېږي؛ کله تعجب څرگندوي؛ کله پوښتنه کوي او يا هم کله کومه خبره په ډېر ټينگار سره کوي. دا مسايل د ليکنښو سمې کارونې ته گوته نيسي. د ليکدود د سموالي لپاره دغو نښو ته پام لازمي او ضروري دی . ليکنښې له موږ سره د جملو په لوستلو او د کلمو د سمې معنا په پوهېدو کې مرسته کوي. همدارنگه له موږ سره مرسته کوي، جملې هغسې رواني ولولو، لکه: خبرې چې کوو. هڅه کوو له دې لوست وروسته د ليکنښو په ارزښت او کارونې وپوهيږئ.

د ليکنښو په اړه څه پوهيږئ؟

دا لاندې دوه ليکنې وګورئ:

غواړم ستاسو په شرکت کې کار وکړم. د دوو کلونو لپاره مې په سپين زر شرکت کې کار کړی دی. داسې کوم شی مې نه دی پلورلی چې افتخار مې نه دی په برخه شوی. که له تاسو سره کار وکړم، نو ډاډه يم چې همداسې به وي.

غواړم ستاسو په شرکت کې کار وکړم د دوو کلونو لپاره. په سپين زر شرکت کې مې کار کړی دی. داسې کوم شی مې نه دی پلورلی. افتخار مې نه دی په برخه شوی. که له تاسو سره کار وکړم، نوډاډه يم چې همداسې به وي.

ليکنښې په لاندې ډول دي.

۱ـ ټکی: Period ( . ): ټکی د يوې بشپړې بياني جملې په پای کې راوړل کېږي. د ټکي او د هغه د مخکينۍ کلمې تر منځ واټن نشته او بايد ورسره جوخت کېښودل شي. له ټکي وروسته د يوه توري ځای سپين پرېښودل کېږي او بيا بله جمله پيلېږي.

لکه: دکلتور اصطلاح پخوانی لرغونې ريښه لري. د دې کلمې ريښه د لاتينې ژبې دکلتورا کلمې ته رسيږي.

په انټرنيټ کې ورته "ټکی" يا "Dot" وايي.

همدارنګه ټکی په مخففو تورو پسې هم ليکل کېږي. لکه م. م. (ملګري ملتونه)، يا هـ. ش. (هجري شمسي)

تر سرليک، بغلي (څنګيزو) سرليکونو، په ستونونو کې د فقرو ترمنځ او داسې ورته نورو ځايونو کې ټکی مه کاروئ.

د پوښتنې له نښې او ندايې وروسته ټکی مه ږدئ.

که جمله په لينده کيو کې راتله، نو ټکی په لينده کيو کې دننه کېږدئ. لکه (د هغه وخت دود داسې و.)

د نېټې په ليکلو کې هم کارول کېږي، لکه: ۲۹. ۱۲. ۱۳۸۸

۲_ چپه پېښ ، ترونی یا کامه، Comma ( ، ): دا نښه په یوې بشپړې جملې کې د یو لنډ ځنډ لپاره کارول کېږي.

همدارنګه، د نیمګړو خبرو او د کوچنیو ترکیبونو تر منځ د عطف لپاره راځي.

لکه: رحمان بابا لوی شاعر، ستر ادیب او پوخ متفکر و.

د یوې موضوع د بېلو بېلو ډولونو تر منځ د توپیر لپاره راځي.

لکه: نوم، ضمیر، فعل، قید او ... د کلمې ډولونه دي.

په یوې مرکبې جملې کې د معترضه جملو د بېلولو لپاره کارول کېږي.

لکه: زلمي د احمد موټر چې په نهه سوه زره افغانۍ یې پېرودلی و، ټکر کړ.

په جمله کې د بېلو بېلو شیانو تر منځ کارول کېږي.

لکه: کاغذ، قلم، مشواڼۍ او رنګ راواخله او راځه.

د پوښتنې په ځواب کې تر "هو" یا "نه" وروسته راځي.

یادونه: په پام کې دې وي چې د کامې نښه له مخکینۍ کلمې سره جوخته راځي او واټن ورسره نه لري. له کامې وروسته دې یو توری فاصله ورکړ شي. همدراز له خو، بلکې، مګر څخه د مخه کارول کېږي، خو هېڅکله دې له "او" څخه د مخه نه راوړل کېږي.

۳_ ټکی او کامه یا ځنډنی Simicolon( ؛): دغې نښې ته مفرزه ، ممیزه او سیمې کولن هم وایي. دا نښه د زیاتې وقفې لپاره په کارېږي، مګر د کلمو تر منځ نه راځي، بلکې د هغو مرکبو جملو په منځ کې راوړل کېږي چې په معنا کې یو له بله سره تړلې وي. لکه: له هغه علم څخه چې اخلاق ور سره نه وي؛ ناپوهي غوره ده. همدارنګه د دلیل او علت د بیانولو له لومړنیو کلمو څخه د مخه هم دغه نښه لیکل کېږي، لکه: مورړ د خپلو ښوونکو درناوی کوو؛ ځکه هغوی موږ ته پوهنه رازده کوي.

پر دې نښې جمله په دوو یا زیاتو برخو وېشل کېږي.

کله چې د ځینو لفظونو تر منځ ویر ګل وي، تر وروستي لفظ وروسته د اوږدې وقفې لپاره ځنډ نښه راځي، لکه: ننګرهار، لغمان، کونړ، نورستان؛ په ختیځ زون پورې اړه لري.

په علمي او څېړنيزو ليکنو کې چې کله د يو مطلب په هکله څو ماخذونه ذکر کېږي، د هر يو د بيلولو لپاره هم ځنډ نښه کارول کېږي، لکه: کابل مجله پرله پسې ۳۱مه ګڼه؛ هيله مجله ۸ مه ګڼه؛ الينګار مجله ٤مه ګڼه؛ زما د خوښې مطلبونه لري.
٤ـ څرګندنې ، شارحه يا د بيان علامه Colen ( : ): دا نښه د يوې کلمې د سپړنې او د بيان نښه ده؛ يعنې د هغې کلمې يا جملې په پای کې ليکل کېږي چې وروسته وريسې بيان او شرحه راځي، لکه: د ژوندانه او کاميابۍ ستنې دا دي: پوهه ، روغتيا او زيار.
د يو شي د اجزاوو د ښودلو لپاره راځي، لکه: ليک نښې دا دي: ټکی، ځنډ نښه، لينده کې او نور.
د يوه شي د څرګندولو او تفصيل پر مهال: روژه يو شمېر ګټې لري: د الله ﷻ د رضا د حاصلولو ذريعه ده؛ د ګناهونو د ښنلو لامل او د جسماني روغتيا لپاره ګټوره ده.
٥ـ د پوښتنې نښه، د استفهام علامه يا سواليه، Question Mark (؟): دا نښه د پوښتنې په وخت کې راوړل کېږي او د هر ډول سواليه جملو په پای کې راځي، لکه: ستاسو د پښتو ښوونکی څه نوميږي؟
٦ـ بلن نښه، غږ نښه يا ندايه، Exclamation Mark ( ! ): دا نښه د غږ او ندا په وخت کې کاريږي، لکه: ای هلکه! دلته راشه. په اصل کې د خبرداری او تنبيه نښه ده او له دې امله د مخاطب امر په برخو کې راځي. لکه: ورونو! د وطن ناموس وساتئ.
دغه نښه د تعجب، شاباس او افسوس په ځای کې هم راوړل کېږي؛ خو د زيات تعجب، استهزاء او زياتې خبرداری په وخت کې دوه ځله، بلکې درې ځله هم ليکل کېږي. لکه،
غلبېل کوزې ته وايي چې سوری!!
آفرين ستا په دې غيرت او مېړانه!!!
په ليکونو، مکتوبونو او غوښتنليکونو کې دې له لقب څخه وروسته نه راځي، بلکې پر ځای يې "کامه" ليکل کېږي، لکه:
زماګرانه وروره،
ښاغلی مدير صاحب،

داسې مه لیکئ:

ګرانه وروره!

ښاغلی مدير صاحب!

۷_ دش، بیان نښه یا بېلنی (Dash) (_) : دا نښه د يوې جملې د بېلونې لپاره لیکل کېږي، په تېره په سوال او ځواب کې د هرې جملې په سر کې راځي. سوال او ځواب سره بېلوي، لکه

_ څنګه راغلې؟

_ ستا د لیدو لپاره.

_ ما نه غوښتل چې په دې وخت کې تا وګورم.

دا نښه د دوو کلمو د بېلونې لپاره هم په داسې وخت کې راځي چې د هرې کلمې خپلواکي او ځانله والی مقصد وي، لکه: صرف _ نحو _ بديع _ بیان _ معاني _ عروض _ وزن _ قافیه ټول ژبني علمونه دي.

۸_ وړه کرښه، یا هایفن (_): وړه کرښه (Hyphen) د دش د اوږ دوالي په نیمایي ده. دا نښه هغه وخت کارول کېږي چې يوه لويه يا مرکبه کلمه د پاڼې د يوې لیکې (کرښې) په وروستۍ برخه کې راشي، نیمه کلمه ځای شي او د پاتې نورې لپاره ځای نه وي، نو له نیمې کلمې وروسته د کرښې په پای کې دغه نښه راځي او د کلمې پاتې برخه د بلې کرښې په سر کې لیکل کېږي. تر شمېرو وروسته هم لیکل کېږي، لکه: ۱- ۲- ۳

۹_ ولاړه کرښه، سلش یا بار (/): دغې نښې ته بېلوونکې یا ممیزه هم وايي. په انګرېزۍ کې (Slash) ورته وايي. دا نښه پر دفتري لیکنو سربېره د هجري لمريز، سپوږمیز او میلادي کلونو د بېلولو لپاره کارول کېږي.

_ د ( یا ) پر ځای ایښودل کېږي، لکه: استنباط / استخراج ؛ هلاك / نجلۍ.

_ د ورځې میاشتې او کال د نېټو د آسانه ښودلو لپاره هم استعمالېږي، لکه: دا ګرامر په ۲۸/۸/۱۳۸۸ لیکل شوی.

۱۰_ لیندۍ ( ) (Parentheses) : لیندۍ یا قوسین د هغو اضافي کلمو لپاره کارول

کېږي چې په عبارت او کلام کې مقصد نه وي، لکه: شاه شجاع (د تیمورشاه زوی) د پلار په څېرعلم پالونکی نه و.
د ځانګړو نومونو، د پاملرنې وړ شیانو او په منځ کې د رالوېدلو جملو د ښودلو لپاره لیکل کېږي، لکه: (سمسور) په اتم ټولګي کې دی، خو (میرویس) او (روښان) په لومړي ټولګي کې دي او (نسیم) لا تر اوسه کوچنی دی.
همدا راز په ژباړه کې د څرګندتیا لپاره په متن پورې نا اړونده برخه په قوسینو کې لیکل کېږي.
۱۱ـ غبرګې لېندۍ، نقل قول (" ") (Quotation Mark): په دې نښه کې د بل چا وینا په مستقیم ډول ایښودل کېږي، لکه، حدیث شریف دی: "عمل په نیت اړه لري."
د بل چا نظریه یا د یوه کتاب عبارت او د زیاتې توجه وړ اشنا کلمه راوړل کېږي، لکه: په دې ورځو کې د "آزاد بازار" خبرې ډېرې کېږي. کله نا کله ځینې اصطلاحګانې هم د غبرګو لېندیو په منځ کې لیکي چې له عام عبارت څخه بېلې شي.
۱۲ـ قوسین [ ] (Brackets): دغه نښه د اقتباسونو په دننه کې د هغو وضاحتي جملو او تعلیقاتو د اضافه کولو پر مهال کارول کېږي او لېږ دوونکی یې له خپل لوري لیکي چې د اقتباس شوي کلام او د لېږ دوونکي د وضاحتي الفاظو ترمنځ توپیر وشي، لکه: "په دې یادښت کې د جنرال جیکسن له زحمته [د جګړې په لومړۍ ورځ د چانسلرس ویل په جبهه کې] یادونه ونه شوه؛ خو له جنرال لي څخه د سترې فتحې په مناسبت ستاینه شوې ده." دغه نښه د کمپیوټر په کمپوز کې د قرآن کریم د آیتونو د حوالې ورکولو لپاره هم استعمالېږي.
۱۳ـ درې ټکي یا د حذف نښه (...)(Ellipsis): کله چې یو لیکوال د یو نامه یا یوې خبرې څرګندول نه غواړي، نو پر ځای یې درې ټکي ږدي او ورځنې تېرېږي، لکه: "د ... رئیس ډېر ظالم سړی دی، له هر چانه رشوت اخلي."که دا لیکنه د جملې په پای کې وي،

نو درې ټکي خوا په خوا او څلورم ټکی (د جملې د پای ټکی) د يو توري په واټن وړاندې ليکل کېږي، لکه: په افغانستان کې د ډرامې دا ليکوال د يادولو وړ دي: ف. فضلي، عبدالمنان ملگری او... .

۱۴ ــ درې ستوري (***): دا نښې د يوې رسالې يا يوې مقالې د يوې برخې د سرته رسېدو او د بلې برخې د پيل کېدو په منځ کې راوړل کېږي. همدارنگه د يوې کيسې له يوې برخې يا صحنې نه بلې ته د تلو په منځ کې د بېلوالي لپاره هم کارول کېږي.

۱۵ــ تر جملې لاندې کرښه: (Underline): که چيرې يونوم يا جمله په ځانگړې ډول د پاملرنې وړ وي، نو لاندې ترې يوه اوږده کرښه را کښل کېږي، لکه: ښاغلو! دلته دريدل منع دي.

۲۰ــ "اټ" نښه (@): دا نښه په انگليسي ليکنو کې کارېدله، خو د انټرنېټ له عامېدو وروسته يې د انټرنېټي ويب پاڼو، مؤسسو او اشخاصو د پتو د ښودلو او ليکلو لپاره په پښتوکې ځای نيولی او په پښتوليکنه کې راځي، لکه: curriculum@moe.gov.af او نور.

يادونه: بايد په ياد مو وي چې ټولې ليک نښې له (نښو) سره جوختې اونښلولې راځي او هېڅ راز فاصله يې بايد تر منځ نه وي. که نه، ليکل نيمگړي بلل کېږي.

د متن لنډيز:

ليکنښې د يو چا ښو او لاسونو ته پاتې کېږي. د لاس يا ښو نه لرل او يا د هغوی نيمگړتيا د انسان پر فزيکي حالت مستقيم اغېز لري. ليکنښې هم همداسې درواخلئ. که يوه ليکنه ليکنښې ونه لري يا يو ليکوال د نښو په کارولو پوه نشي، ليکنه يې څرگند پيغام نشي لېږدولای. پورته مو وليدل چې د ليک نښو کارونه څومره ارزښت لري او د هغوی ناسمه کارونه يوه موضوع څومره اړولای شي.

له دې امله په يوې ليکنې کې ليکنښې ډېر ارزښت لري او سمه کارونه يې د ليک لوستل او پر مفهوم يې پوهېدل اسانوي.



## فعالیتونه

۱ـ ټول زده کوونکي دې پورته متن په غور وګوري، د لیک نښو بېلا بېلو ډولونو ته دې پام وکړي او د هغوی د کارونې ځایونه دې زده کړي.

۲ ـ هر یو زده کوونکی دې په ټولګي کې داسې یوه موضوع ولیکي چې پورته ټولې لیکنښې پکې کارول شوې وي. بیا دې په وار د ټولګي مخې ته راشي او خپله لیکنه او د لیکنښو کارونه دې نورو ته روښانه کړي.

۳ ـ له لیک نښو پرته نور کوم نحوي بدلونونه د یوې جملې مطلب بدلولای شي؟ درې تنه زده کوونکي دې د ټولګي په وړاندې د یو بل په مرسته هغه پیدا او په توره تخته دې ولیکي او له نورو زده کوونکو سره دې پرې خبرې وکړي.

٤ـ معترضه جمله څه ته وایي او څنګه په جمله کې پېژندل کېږي؟ یو تن زده کوونکی دې یې له بېلګو سره یوځای د ټولګي په وړاندې ولولي.

۵ـ په کومو وختونو کې له ندایې سره د پوښتنې نښه کارول کېږي؟ یو تن زده کوونکی دې هغه له بېلګې سره یوځای د ټولګي په وړاندې بیان کړي. نور زده کوونکي دې ښه ورته ځیر شي.



## کورنی دنده

زده کوونکې دې په کورونو کې د ښوونې او روزنې د ارزښت په اړه یوه مقاله ولیکي او لیکنښې دې پکې په سم ډول په پام کې ونیسي. یاده دې وي چې هره لیکنښه په وروستي توري پسې له واټن پرته لیکل کېږي. وربسې لیکنه د یو توري له سپینې فاصلې وروسته پیلېږي.





# قيام الدين خادم



د افغانستان د ادبي تاريخ په غېږه کې زيات شمېر ليکوال او شاعران روزل شوي او پالل شوي دي. هغوی هر يو په خپلو ليکنو او څېړنو کې د خپل مهال حالات او شرايط انځور کړي او تر موږ يې رارسولي دي. نوي نسل ته د هغوی د ليکنو لوستل او د هغه مهال له شرايطو څخه د ځان خبرول له ګټې خالي نه دي.موږ په تېرو لوستونو کې يو شمېر پښتنانه پوهان، ليکوال او شاعران پېژندلي او د هغوی د ليکنو او د فکر له لارو سره آشنا شوي يو. دلته د پښتو يو وتلی او نوميالی متفکر، ليکوال او شاعر درپېژنو. هغه قيام الدين خادم دی.

آيا تاسو تر اوسه د خادم صاحب کوم شعر يا ليکنه لوستې ده؟

قيام الدين خادم په ۱۳۲۵ هجري قمري کال (۱۹۰۷ میلادي) کې د ننګرهار ولایت د کامې ولسوالۍ د زرشوی په کلي کې زېږېدلی دی. پلار يې ملاحسام الدين او نيکه يې ملا علي ګل هم د خپل وخت ديني عالمان وو. اروابناد خادم د مورني نسب لړۍ په فقيرصاحب مشهورعبدالرحمن سيلاني ته رسيږي. عبدالرحمن سيلاني د خپل وخت ستر ديني عالم تېر شوی دی او د مراد علي (رح) پلار و. اروابناد خادم لومړنۍ زده کړې په خپل کور کې له خپلو والدينو څخه ترسره کړې دي. خادم صاحب د اسلامي علوموګڼ شمير کتابونه لوستي دي. هغه صرف، نحوه، منطق، حکمت، فقه، حديث، تفسير او د نورو دوديزو علومو زده کړې ترلاسه کړې وې. هغه د ديني پوهې د ترلاسه کولو لپاره ۱۵ کاله په هېواد کې دننه او له هېواد نه دباندې سفرونه کړي وو.

قيام الدين خادم په بېلابېلو دولتي دندو ګومارل شوی او د هېواد په بېلابېلو ولايتونو کې يې دندې ترسره کړې دي. نوموړي خپله لومړنۍ دنده د ښوونکي په توګه پيل کړه، بيا د کندهار د پښتو ادبي انجمن او د زيري، اتحاد مشرقي، د کندهار د طلوع افغان، هېواد او اصلاح د ورځپاڼو د مسوول مدير په توګه خپلې چارې پرمخ بېولې دي. استاد خادم د منظومو او منثورو آثارو ډېر په زړه پورې کتابونه ليکلي او زيات شمېر ځانګړي اثار يې چاپ شوي دي چې يو شمير يې دا دي:

د کوچنيانو اخلاقي پالنه، روهي ګلونه، د مرغلرو اميل، نوی ژوندون، مکارم اخلاق، پښتونولي، بايزيد روښان، خيالي دنيا، د شريف سرګذشت، نبوغ او عبقريت (فلسفي اثر)، نوې رڼا، د پښتو نننۍ ليکوال، د پښتنو د تاريخ يوه سرپاڼه، د خوشحال او د رحمان موازنه، ځاروان، د څلورم ټولګي لپاره د پښتو قرائت، پښتو کلي (په ٦ ټوکونو کې)، معلم پښتو، پښتانه شعراء (لومړی ټوک)، پارتيان څوک وو، په تذکرة الاوليا تبصره، کوشانيان څوک وو، د بابا نصيحت، د پښتو پټې، د پښتو نثر، تاريخي تصورات، لوی سهاک، ادبي قصې، لوی اصحابان (اصحاب کرام)، نشنليزم او انټرنشنليزم، افغاني حکومت، معياري پښتو، بلکا، د پښتنو ستړه او ځانګې، نصوص الحکم، د مور مينه، لرغوني پښتانه قومونه، ټولنپال افغان مانوفېسټ (د مولانا قيام الدين خادم سياسي افکار) ليکلي او چاپ شوي دي.

د نوموړي ګڼ شمېر نور آثار لا تر اوسه نه دي خپاره شوي. مرحوم خادم په اردو او عربي ژبو هم بلد و. د همدغو ژبو په مرسته هغه د یوه کنجکاو او پلټونکي انسان په توګه هڅه کوله او د ډېرو شیانو په راز یې ځان پوه کړی و. کېدای شي د هغه د بریالیتوبونو له رازونو څخه یو هم همدا ویولو.

د هېواد په سیاسي ډګر کې قیام الدین خادم فعاله ونډه درلوده. ارواښاد خادم د حقیقت له څرګندولو سره مینه لرله. تل یې هر څه بربنډ ویل. خادم په زیات شمیر ادبي او علمي غونډو کې برخه اخیستې ده او کله، کله د دولت اړونده ارګانونو له خوا په ستاینلیکونو او ډالیو سره نازول شوی او ستاینه یې شوې ده. مرحوم خادم د فلسفي اند او علمي شخصیت څښتن و. هغه په رښتیا له خپل ولس سره مینه درلوده او د هغه خدمت یې په ډېره خوښۍ سره کاوه. هغه د هر ډول مشکلاتو او سختیو په مقابل کې د مقاومت، صبر او حوصلې لارښوونه کوله. استاد خادم د معاصرو ادبیاتو له هغو پنځو ستورو څخه و چې پښتو ادب او کلتور یې ځلولی او د یوه داسې ویښ زلمي په احساس یې د پښتو ادب چوپړ کړی چې د نن زلمیان یې درناوی کوي.

د ارواښاد خادم د "شه بیدار پښتونه" په نامه لومړنی شعر په اتحاد مشرقي کې خپور شوی دی. په نثر کې د استاد خادم تر ټولو خواږه او خوندور اثرونه د "نوي ژوند" او "خیالي دنیا" په نامه دي. دا دواړه ادبي شهکارونه ګڼل کېږي. د استاد خادم په لیکنو کې د پښتو او پښتونولۍ مینه ډېره پیاوړې ده. په دې برخه کې د یوې پخې عقیدې خاوند دی. سربېره پر دې استاد خادم لیکنې ادبي، انتقادي، ټولنیز، سیاسي او روزنیز رنګ لري. خادم په خپلو لیکنواو شعرونو کې د ظالم له مخ څخه پرده پورته کړې او رسوا کړی یې دی. هغه ولس یووالي اواتفاق ته رابللی دی، نامنلي زاړه دودونه یې غندلي دي، په خپلو لوستونکو کې یې د زړورتیا او ازادۍ احساس پیاوړی کړی. استاد خادم د خپلو لیکنو له لارې د ټولنې هره تیاره رڼا کړې او ولس ته یې څرګند پیغام ورکړی دی.

د افغانستان دا لوی مفکر، ژورنالست، ادیب، لیکوال، د فلسفي افکارو خاوند، د ټولنې طبیب، سیاستپوه او ټولنیز شخصیت د ۱۳۵۸ هـ. ش. کال د وږي د میاشتې په ۵مه

نېټه د ۷٤ کلونو په عمر له نړۍ څخه سترګې پټې او د کامې ولسوالۍ د زرشوی په کلي کې په خپله پلرنۍ هدیره کې په ډېر درنښت خاورو ته وسپارل شو.

خادم چې په اخلاص شي څوك د ملك او د ملت

وطـن يـې پـس لـه مرګـه پـه مدفـن فخـر کوي

قیام الدین خادم په "اوسني لیکوال" کې خپل ژوندلیك خپور کړی دی، هغه په یوه برخه کې د "زما پر حیات انتقادات" تر سرلیك لاندې یو لړ مطالب لیکلي چې موږ یې د هغه د نثر د بېلګې په توګه راخلو:

"...دا د خلکو قصور دی اوکه زما عیب؟ استادان به هم زما پوښتنو ته اریان وو.

زه پخپله هم په دې قانع یم چې بحث مې خوښ دی، مګر په اساسي او اصولي خبرو، نه مطلق بحث... . وایي سرشوخه دی، مګر دوستان مې وایي ادبي شجاعت لري. په ورکوټوالي کې راته خلکو ویل چې کلانکار دی، ولې په آزادۍ خو زه په خپله هم قایل یم او دا ځکه چې دا طبیعي بار زما په ورمېږ نشته. هو، په دې یوه ګناه زه پخپله هم قانع یم چې هغه د حقیقت مینه باید وبولم. په ژوندانه کې هېڅوك له انتقاده نه دی خلاص. هغه انتقادونه چې په ما یې خلك کوي دادي:

وایي نه منونکی سړی دی. دا انتقاد په ما باندې زما والدې هم هر وخت کاوه. مګر زما جواب داو چې که زه منونکی وای، خوزه به هم د نورو خلکو غوندې وای.

په ورکوټوالي به مې د مور سره تل په دې جنګ و. دې به ویل: خلك داسې کوي اوته داسې. مابه ویل چې: خلك راته مه یادوه خلك خو هر څه کوي. وایي ډېر بحث کوي اونه قانع کېږي ... دا خبره نشم فیصله کولای. خلك په امورو کې د نورو نورو ملاحظاتومراعات کوي، مګر زه په حقیقت او واقعیت پښې نشم ایښودای. ما خپل دغه عادت په هغه نظم کې چې د شاعر مسلك یې نوم دی، ښه تصویر کړی دی. زه دا ټولې خبرې اورم مګر د ځان سره وایم: ډیرې خولې ډیرې خبرې."

لکه پورته چې ورته اشاره وشوه، اروانښاد قیام الدین خادم د "شاعر مسلك" تر نامه

لاندې یو شعر لیکلی دی. په دې شعر کې شاعر خپل مسلک ته څرګندې اشارې کړې او له هېواد، ژبې او ولس سره مینه یې پکې غبرګه کړې ده. نوموړی شعر په دې ډول دی:

## د شاعر مسلک

صحیح لاره به ښایم؛ که وم وم که نه وم نه وم
رښتیا رښتیا به وایم؛ که وم وم که نه وم نه وم
د حق د پیروۍ نه مې بل څه په زړه کې نشته
چې څه یمه همدا یم؛ که وم وم که نه وم نه وم
آزاد یم زېږېدلی بنده ګي کولی نشم
بنده د خپل مولا یم؛ که وم وم که نه وم نه وم
په بډو خوشامندو مې ځان خوښ نه دی چې غټ شم
که غټ یمه خو دا یم؛ که وم وم که نه وم نه وم
چې څوک غواړي څه سپکه مې د قام له څه جهته
دښمن د هغه چا یم؛ که وم وم که نه وم نه وم
خدمت د خپلې ژبې، قام، وطن زما مسلک دی
په دې مینه به پایم؛ که وم وم که نه وم نه وم
کرم ښکلي تخمونه چې ګلزار شي پښتنو ته
په دغه تمنا یم؛ که وم وم که نه وم نه وم
په ماته کښتۍ ناست یم توپانونه دي په مخ کې
په دې لاره یې بیایم؛ که وم وم که نه وم نه وم
د ناز په خوب ویدې غونچې به ورو ورو ویښومه
خادم باد سبا یم؛ که وم وم که نه وم نه وم

د متن لنډیز:

قیام الدین خادم د ننګرهار په کامه کې نړۍ ته سترګې پرانیستې دي. لومړنۍ زده کړې یې په خپل کاله کې له خپل پلار او نورو زده کړې یې د هېواد دننه او بهر سرته رسولي دي. خادم په بېلابېلو لوړو دولتي څوکیو کې کار کړی او د ډېرو ادبي، ټولنیزو او سیاسي لیکنو لیکوال و. هغه یو افغان سیاستپوه، د مشرانو د جرګې سناتور، د کابل پوهنتون د ادبیاتو د پوهنځي استاد، ژورنالیست، پیاوړی لیکوال، ویښ شاعر، ادیب او د فلسفي اندونو یو پوه عالم و. نوموړی په پښتو ادب کې یو ځانګړی ځای لري او په همدې سبب هغه د پښتو ژبې او ادب له پنځو ځلاندو ستورو څخه یو ستوری ګڼل کېږي. هغه د پښتو ژبې او ادب په باب په زړه پورې منظوم او منثور آثار لیکلي. د ادبي هلو ځلو تر څنګ نوموړي په سیاست کې هم ښکاره ونډه درلوده.

## فعالیتونه

۱ـ زده کوونکي دې داسې یوه غونډه تمثیل کړي چې د قیام الدین خادم د ژوند، زده کړې، لیکنو، دندو او د هغه د لیکنو نثري او شعري بېلګې وړاندې کړي. یو تن دې د غونډې وياند (انانسر) وي. یو زده کوونکی دې د غونډې منشي وي. پنځه تنه دې د پورته یادو شوو موضوعګانو په اړه لنډې خبرې وکړي او معلومات دې وړاندې کړي. په پای کې دې یو تن زده کوونکی د غونډې بهیر وارزوي. د هغې ښه ټکي او نیمګړتیاوې دې په ګوته کړي. د دې غونډې د تنظیم لپاره دې د مخه لس دقیقې چمتووالی ونیول شي.

۲ـ دوه تنه زده کوونکي دې په خپله خوښه د ټولګي مخې ته راشي او د قیام الدین خادم د شعر او نثر بېلګې دې په خواږه اومنلي غږ واوروي.

۳ـ زده کوونکي دې سوچ وکړي د يوه ليکوال او شاعر له شعرونو او ليکنو څخه څنګه د يوې ټولنې د هغه مهال وضع او حالت څرګند شي چې ليکوال په کې ژوند کاوه. بيا دې خو تنه په وار د ټولګي په وړاندې د هغې په اړه خبرې وکړي.

٤ـ زده کوونکي دې په مناسبو ډلو کې تنظيم شي او د ژبې په ودې او پايښت کې دې د ليکوالو ارزښت وڅيړي. همدا راز دې په ټولنيز پرمختګ او له ظلم او ناخوالو څخه د ټولنې د افرادو د ژغورلو په لاره کې د شاعر او ليکوال اهميت څرګند کړي. په پای کې دې د ډلې استازي راغونډ شوي موضوعات نورو ته واوروي او آزادې خبرې اترې دې پرې وکړي.

۵ـ زده کوونکي دې په خپلو سيمو کې د يو يا دوو شاعرانو يا ليکوالو او د هغوی د شعر او ليک په اړه معلومات وړاندې کړي. کېدای شي ټول زده کوونکي په خپله خوښه په دې فعاليت کې برخه واخلي.




زده کوونکي دې د "شاعر مسلک" تحليل او وڅيړي. خپله ليکنه دې په بله ورځ نورو ته واوروي.

د هر ليکوال د فکر ډول د هغه له ليکنو او د هر هنرمند د هغه له هنر څخه پېژندلای شو.

((مايکل انژ))

لاندې نثري ټوټه ولولئ او خوند ترې واخلئ:

## خوندور خوب

مازيګر لمر په غرغړه دی. د انګړ په منځ کې، د ګلانو د کياريو په غاړه، وړوکی ماشوم په لوبو بوخت دی، په لمن کې خاورې اخلي له يوه ځايه يې بل ته وړي او هلته يې غونډوي.
مور د کاله په کار اخته ده. په ډېره بېړه لګيا ده، کالي کوندې سنبالوي؛ ځکه چې ماښام دی او وخت ناوخته دی. د کار په منځ کې يې چې پام شي نو غبرګ کړي چې: "زړګيه! څه کوې راځه ناوخته دی، هله ځار دې شم!" ماشوم په خپله نيمکۍ او خوږه ژبه وايي: "ډوډو پکه کم." مور: "څه کوې؟!"
ماشوم: "ډوډو پکه کم" يعنې "ډوډۍ پخوم." مور د کاله په کارو بوخته او ماشوم په خپلو لوبو. وړې وړې مرغۍ چې په کياريو کې يې ټوپونه وهل خوشحاله خوشحاله او جلتې جلتې ګرځېدې. يوه يوه والوته او ټولې خپلو بچيو او ځالو ته لاړې. وخت تېرېږي، نمر ولوېد، له ښکې تياره راپورته او د ځمکې په مخ راخوره شوه. د آسمان په شنه او نامحدوده فضا کې ځای پر ځای ستوري راښکاره شول.
مور چې د کار له بېړې نه خلاصه شوه له ځانه سره يې وويل: "آه! ماښام دی، تېر غونې شوه، بچی مې هلته لوبې کوي، آه زما هېر شوی دی!"
ورغله څه ګوري، ماشوم د خاورو نه وړې وړې او پلنې پلنې ډوېکنۍ جوړې کړې دي. خړ پړ پروت دی چې ستړی شوی دی، په خاورو کې يې سر ايښی دی او د خوب د قاصدانو لاس ته يې ځان سپارلی دی. د ماښام په خړه تياره کې مور د خپل ماشوم سرته ولاړه ده. زړه يې د يو عالم ترحم او رقت نه ډک دی او چرت وړې ده.
"هو! د ژوندانه مثال همدا دی. موږ په خپل ژوند کې همدغسې په خاورو لوبې کوو. په دغه لوبو اخته او سوچه د مرګ دروند خوب په موږ خپل چپاو راوړي او بل عالم ته مو بوځي.
مګر آه! څومره خوږې دي دا لوبې او څومره خوندور دی دا خوب چې په خپله خوښه او آزادۍ سره وي." (قيام الدين خادم)

# پښتو ادبي سبکونه




پښتو خورا بډایه ژبه ده. اوږد ادبي تاریخ لري. په لاس کې د شتو لاسوندو له مخې یې د شعر مخنیه دویمې هجري پېړۍ ته رسیږي. لومړی موندل شوی شعر یې په ۱۳۹ هجري کې د امیرکروړ دی. په مخکنیو ټولګیو کې مو د پښتو د نظم، نثر، ولسي ادبیاتو او لیکلي ادبیاتو په اړه لازم معلومات ترلاسه کړل. دلته د نورو معلوماتو تر څنګ ادبي سبک درپېژنو.

تاسو هرومرو د سبک نوم اورېدلی دی. ستاسو په اند به څه معنا ولري؟

سبک د نظم او نثر یو خاص ډول بلل شوی دی. هر شاعر او لیکوال د لیکلو او شعر ویلو ځانګړې لاره لري. هغه ځانګړتیاوې چې په ادبي او هنري اثاروکې د بیان او تخلیق د ډول، بڼې او محتوا له مخې یو اثر له بل څخه بېلوي، سبک نومېږي. سبک خپلې ښکېنې، لارې او طریقې لري. سبک ډېره لرغونې کلمه ده او په ادبیاتوکې په بېلا بېلو معناوو څرګنده شوې ده. د ادبي سبک کلمه هنري ادبیاتو، انځورګرۍ، معمارۍ، موسیقۍ، مجسمې جوړونې، خطاطۍ او نورو ته هم کارول کېږي. په منځنیو پېړیوکې د سبک له مفهوم څخه داسې انګېرل کېدل چې تراژیدي او کمیډي ژانرونه په کومو الفاظو ولیکي. څکه کمیډي ژانرونه به په عامیانه ژبه؛ یعنې د خلکو په ژبه او تراژیدي به د هغې برعکس د هغه وخت په ادبي ژبې لیکل کېدل. په معاصره دوره کې د سبک معنا روښانه شوه. په دې دورې کې پر سبک باندې د لیکوال د لیکوالۍ طرز، د فکر لارې او د لغاتو د کارونې معنا پیدا کړه. تر هغه ځایه چې د سبک کلمه د یو ټاکلي لیکوال او هنرمند په اثارو پورې اړه لري او د هغه آثار د خصوصیاتو له مخې یو له بله بېلېږي، دا د سبک لومړۍ معنا بلل کېږي. کله چې له یوې ټاکلې موضوع او مفکورې څخه د لیکوالو یا هنرمندانو یوه ډله دفاع کوي، نو دلته سبک د مکتب معنا پیدا کوي. په دې معنا چې په یوې ټاکلي تاریخي دورې کې د څو لیکوالو د لیکوالۍ ډول، د فکر لارې او نورې ورته ځانګړتیاوې د هغوی له لیکنو څخه راایستل کېږي. ادبي سبک په یوې محدودې معناکې د یوه لیکوال او هنرمند په ټولو اثاروکې هغه نښې نښانې دي چې له لارې یې د لیکوال او هنرمند د فکر ډول څرګندیږي. د یوه لیکوال سبکي یووالی له هرڅه د مخه د څو آثارو په هنري او ادبي ژبه کې ترټولو ښه احساس کېدای شي. د یوه لیکوال او هنرمند د لیکوالۍ او هنري آثارو ځانګړتیاوو ته سبک ویل کېږي. که څوک د یوه لیکوال له سبک سره آشنا وي، نو کولای شي د هغه د سبک له مخې د هغه نور آثار وپېژني. ادبي سبک د یوه لیکوال او هنرمند ټول اثار او د هغوی پراختیا څېړي.

ادبي مکتب یا ادبي جریان په یوې ټاکلې تاریخي دورې کې د یوې ادبي ډلې لیکوالو له خوا د یوې ځانګړې لارې او د یو ځانګړي سبک خپلول او پر مخ وړل دي. دا حرکت د ادبي جریان په نامه یادیږي. د یادونې وړ ده چې په دغه ټاکلې دوره کې د لیکوالو او شاعرانو له خوا لیکل شوي او ویل شوي اثار یو ځانګړي ادبي مکتب ته منسوبیږي.

په پښتو ادبیاتو کې دا لاندې ادبي مکتبونه مشهور دي:

- د روښاني دورې تصوفي او ادبي مکتب،
- د خوشحال خان خټک ملي، حماسي او ادبي مکتب،
- د عبدالرحمن بابا تصوفي او ادبي مکتب،
- د حمید مومند هندي ادبي مکتب،

۱ـ د روښان په تصوفي مکتب کې اخلاقي، ټولنیز، دیني او نور مطلبونه ځای شوي دي. دې موضوع ګانو د روښان د تعلیم او ښوونې په اثر په پښتو ژبه کې ځان ښکاره کړی دی. تر ده وروسته د ده مریدانو او اولادونو پر دې لار ګامونه ایښي دي. اخون درویزه د خپلو لیکنو لامل د میا روښان لیکنې بللې دي. د روښان لارویانو د ده مسلک چلولی دی. د روښان په ادبي مکتب کې ډېر خلک د پښتو ادب له کاروان سره ملګري شول. ډېرو خلکو قلم په لاس کې واخیست او ددغه پېر غوښتنې یې په ډله ییزه توګه په ښه شان انځور کړې. د بایزید روښان او د ده د مخالف، اخون درویزه د مخزن الاسلام له لیکنو څخه څرګندیږي چې دغه لیکنې په مسجع نثر لیکل شوې دي. مسجع نثر د عربي او فارسي له لارې پښتو ته رانوتی او په پښتو کې د نوي نثر موسس بایزید روښان دی. دغه سبک د دیني او مذهبي کتابونو د لیکلو دودیز او ځانګړی سبک و.

د کلاسیکي دورې د لومړۍ برخې له ادبي مکتب څخه وروسته بل ډېر مشهور او غوره ادبي مکتب د پښتو په ټولو مکتبونو کې وتلی، د خوشحال خټک مکتب دی. دا مکتب د ادبي فنونو په ګاڼه سمبال شوی مکتب دی. اشعار یې ډېر خواږه دي. دې مکتب ډېر لیکوال او شاعران وپالل او وروزل. له پخوا څخه زیات پښتو ته حماسي اشعار رانوتل. د پښتو لمن له اخلاقي، ټولنیزو، تصوفي، دیني او ملي مسایلو څخه ډکه شوه. نثر هم پراختیا وموندله او مخ په ساده ګۍ روان شو.

په دې دوره کې د پخواني نظم او نثر نیمګړی سبک پیاوړی شو. نثر خوږوالی وموند، له نیم منظوم مسجع نثر څخه خلاص شو او د خبرو اترو بڼه یې وموندله. پښتو شعر د بڼې له مخې هم پراختیا وموندله او نوښتونه رامنځته شول. د موضوع له پلوه هم په دې مکتب کې د

ژوندانه ټول اړخونه رابرسېره شول. په دې وخت کې ډېر آثار لیکل شوي دي او د پښتو ادب نړۍ یې رنګینه کړې ده. په دې مکتب کې د پښتو او پښتونوالي روزنه هم شته. اوږدې، اوږدې قصیدې په کې ویل شوي چې هره یوه یې ځانته بېل بېل ټولنیز، تبلیغي او تاریخي مضمونونه لري. د حماسي احساساتو بنسټ خوشحال خان کېښود او لارویانو یې پیروي وکړه. د مغولو زور زیاتی پکې په جوته څرګند شوی دی. د ادبي ارزښت له پلوه دا مکتب تر ټولو جامع دی. په دې معنا چې د معنا له خوا غښتلی او ادبي او شعري اړخ یې پوخ دی. په تخیل کې دا مکتب ډېر پیاوړی دی. ډېر لوړ او شاعرانه تخیلات پکې شته. دا مکتب د پښتو تر درېیم ادبي مکتب پورې په ډېر قوت او زور چلېدلی دی. په دې مکتب کې په نظم او نثر ډېر اثار لیکل شوي او ډېر پیاوړي کسان پکې روزل شوي دي. په شعر کې اشرف خان هجري، عبدالقادر خټک، صدر خان خټک، سکندر خان، ګوهر خان او نور، په ساده نثر کې خوشحال خټک، افضل خان، قادر خان، او نور پیدا شول او د یوه مکتب پیروي یې وکړه.

د رحمن بابا ادبي او تصوفي مکتب د خوشحال خټک له ادبي مکتب څخه وروسته پیل شوی او ډېر ادبي او تصوفي شاعران یې روزلي دي، لکه: پیرمحمد کاکړ، محمد یونس خیبری، احمدشاه بابا، شمس الدین کاکړ، نجیب، عبدالعظیم رانیزی، بېدل اشنغری، مطیع الله، رحمت داوی، حسین او نور. ددوی په اثارو کې د ژوندانه زیاتره مسایل راغلي دي. د رحمان بابا په اشعارو کې اخلاقي، ټولنیز، عشقي او انتقادي درسونه نغښتي دي. د دې مکتب د پیروانو سبک روان دی. د شعرونو مضمونونه یې عموما عشقي، اخلاقي، دیني، ټولنیز او تصوفي اړخونه لري.

له رحمن بابا او خوشحال خان څخه وروسته په پښتو ادب کې یو بل لوی شاعر پیدا شو او د نازک خیالۍ یو نوی ادبي مکتب یې جوړ او نور شاعران یې خپلې پیروۍ ته راوبلل. دا شاعر حمید مومند و چې د پښتو ادب ګلبڼ یې رنګین او بډای کړی دی. حمید ډېر په زړه پورې ادبي آثار پرېښي دي او پښتو ادب یې له یوې بلې لارې بشپړ کړی دی. هندي سبک چې د ده په وخت کې پراختیا موندلې وه او لوړو پوړیو ته رسیدلی و، ښه یې و سپړه او بیا په خپله پکې شامل شو. د پښتو شعر یې په هندي سبک واړاوه. د هندي سبک ځانګړتیاوې یې پکې

راوستي چې له همدې امله د حمید مومند سبک ته د پښتو هندي سبک ویلای شو. د نازک خیالی په دې مکتب کې د سوز، گداز، مینې او محبت کلمې ډېرې دي. د فورم له پلوه په دې مکتب کې د شعرونو زیاتره ډولونه، لکه: غزل، قصیده، مثنوي، ترکیب بند، قطعه، مخمس، رباعي او نور شته. د غزل برخه پکې درنه وه.

لکه د مخه چې مو وویل حمید په خپله د هندي سبک پیرو و، خو د دې سبک د نورو شاعرانو پر خلاف د ده کلام لږ څه ساده او هر څوک پرې پوهېدای شو. د حمید د وینا بله ځانگړتیا د پښتو ژبې د خوږو محاورو په کارولو کې نغښتې ده. له یوې خوا یې د وینا نازک خیالي او لطافت ساتلی او له بلې خوا د عامو پښتنو د پوهې کچې ته نژدې و. د دې سبک بله ځانگړتیا داده چې حمید د نورو شاعرانو پر خلاف مبتذلې تشبیه گانې نه کاروي او ډېرې نوې او ابتکاري تشبیه گانې یې پیدا کړې دي. علي خان، کامگار خټک، کاظم خان شیدا، محمدي صاحبزاده، عبدالله، ملا محمد، اکرم، قلندراپریدی، نجیب، بېدل، میرزا حنان کندهاری او نور د دې سبک پیروان دی.

د متن لنډیز:

پښتو بډایه ژبه ده. شعر او ادب یې ډېر لرغونی دی. تر ډېرې کچې یې خپل اصل ساتلی دی. هېواد ته د اسلام دین له راتگ وروسته د عربي او فارسي ادب تر اغېز لاندې راغله. عربي ژبه دیني ژبه وه او فارسي ژبې له هغې څخه زیاتې موضوع گانې ژباړلې یا لیکلې وې. پښتانه اړ وو د اسلام دین او مذهب ته د درناوي له امله د هغوی تر اغېز لاندې راشي. له بلې خوا په سیمه کې یو لړ ټولنیزو ناخوالو او سیاسي خوځښتونو یو شمېر پښتانه شخصیتونه دې ته هڅولي وو چې د دین له لارې خپل ټولنیز او سیاسي اهداف مخکې یوسي. بېلا بېل نامتو لیکوالان، شاعران او مشران رامنځ ته شول. هغوی هر یو خپل، خپل پیروان درلودل چې پیروانو به یې د یو واحد شعري قالب په ساتلو خپل مطالب بیانول. په دې توگه په پښتو کې ادبي مکتبونه او ځانگړې سبکونه رامنځ ته شول اوتر ډېره وچلیدل. د روښانیانو، خوشحال خټک، رحمن بابا او عبدالحمید مومند سبکونه یادولای شو.



## فعالیتونه

۱ـ ټولګی دې پر څلورو ډلو وویشل شي. هره ډله دې د سبک په اړه خپل معلومات راټول کړي او په ترتیب سره دې د روښان، خوشحال خان خټک، رحمن بابا او حمید مومند پر ادبي سبکونو باندې رڼا واچوي. د ډلو استازي دې د خپلو ډلو لیکنې ولیکي او ټولو زده کوونکو ته دې یې واوروي. د یادونې وړ ده چې هر زده کوونکی باید په وار سره د ډلې استازیتوب وکړي. دا کار ډېر اړین او د پام وړ دی.

۲ ـ ادبي سبک څنګه ځانګړی کېږي؟ دوه تنه زده کوونکي دې پرې خبرې وکړي.

۳ ـ په پښتو ادبیاتو کې د سبک او مکتب مفکوره څه وخت منځ ته راغله؟ یو زده کوونکی دې پرې رڼا واچوي.

٤ـ مسجع نثر لیکنه د کومو لیکوالو له خوا پیل شوه؟ له ساده نثر سره د مسجع نثر توپیر څه شی دی؟ یو تن زده کوونکی دې د نورو په وړاندې دې پرې خبرې وکړي.

٥ـ د حمید سبک څه ځانګړتیاوې لري؟ دوه تنه زده کوونکي دې د شعرونو او بېلګو په وړاندې کولو هغه بیان کړي.



## کورنۍ دنده

د خوشحال خان د ادبي سبک په اړه معلومات راټول کړئ او په یوې لیکنې کې یې ځای کړئ. په بله ورځ یې په ټولګي کې نورو ته بیان کړئ.

# لور ته د چارلي چاپلين لیک





چارلي سپنسر چاپلین د سینما د ډګر یوه وتلې څېره وه. چاپلین په داسې وخت کې له اونا اونیل سره واده وکړ چې د بریالیتوب پوړۍ ته رسیدلی و. چارلي د ۱۸۸۹ م کال د اپرېل په ۱٦ په لندن کې زېږېدلی او د ۱۹۷۷ م. کال د دسمبر په ۲۷ په سویسزرلنډ کې مړ شوی دی. نومومړي اووه اولادونه درلودل. په دوی کې یوازې جرالډینه وه چې د سینمایي لوبغاړیتوب دنده ورته له پلار څخه په میراث پاتې وه. ځو کاله د سینما په ډګر کې په کار بوخته وه. د پلار په څېر د شهرت پوړیو ته رسیدلې او په هنري غونډو کې یې نوم یادېده. کله چې جرالدینې غوښتل نوې د هنر ډګر ته ننوزي، پلار یې، چارلي ورته یو لیک ولیږه. دا لیک د نړۍ د ښکلو او زړه راکښونکو لیکونو په کتار کې راځي. دا لیک هر لوستونکی او اورېدونکی فکر کولو ته هڅوي.

دلته نوموړی لیک په یو څه لنډون راوړو:

"گرانې لورې، جراللډینې،

دلته شپه ده، د نویل یوه شپه. زموږ په کوچني کور کې ټول خلك ویده شوي دي. ورور دې، خور دې، آن مور دې ویده دي. پرته له دې چې دا ویدې مرغۍ راویښې کړم، ځان مې دې نیمې تیارې کوټې ته چې د مرگ د انتظار کوټې ته ورته ده، راورساوه. زه له تا څخه ډېر لرې یم... خو سترگې مې دې ړندې شي، که به مې یوه شېبه ستا انځور له سترگو اوړي. ستا انځور هلته د مېز پر سر پروت دی، خو ته پخپله په ښکلي پاریس کې د هغه پرتمین تیاتر پر ستېژ. په دې پوهېږم او همداسې ده چې گوندې د شپې په دې چوپه چوپتیا کې ستا د پښو اوازونه اورم او د ژمي په دې تروږمۍ کې ستا د سترگو برېښنا گورم.

اورېدلي مې دي د هغه شهزۍ (شهزادگۍ) په رول کې کار کوې چې د تاتار د خان اسیره شوې ده. شهزۍ اوسه او ناڅه! ستوری شه او ځلېږه! خو که د نندارچیانو له خندا ډك شاباسي او د سوغات شوو گلونو په زړه پورې بوی درته د هوښیارۍ کومه شېبه درکړه، په یو گوښه ځای کې کښېنه، زما لیك ولوله او د پلار خبرو ته غوږ شه.

زما جراللډینې، زه ستا پلار یم، چارلي چاپلین. کله چې ته کوچنۍ وې، شپې شپې ستا سرته ناست وم او کیسې مې درته کولې؛ په ځنگل کې د یو خوب وړي خوندوره کیسه، په دښته کې د ویښ ښامار کیسه،... کله چې به مې زړو سترگو ته خوب راغی، نو په پېغور به مې ورته ویل: څه! زه مې د لور په خوبونو کې ډوب یم.

خوب مې لیده جراللډینې، خوب... . ستا د سبا خوبونه، ستا د نن ورځې خوبونه، د صحنې پر سر مې یوه نجلۍ لیدله، په آسمان کې مې یوه پرښته لیدله چې نخل یې او نندارچیانو ویل: هغه نجلۍ گورئ! دا د هماغه زاړه سړي لور ده... .

نوم یې پېژنې؟ چارلي! هو، زه چارلي یم. زه یو زوړ سړی یم. نن ستا وار دی. وناڅه! زه په هغه ټوټې، ټوټې او شکېدلي پتلون کې نڅېدم او ته د شهزیو په ورېښمینو جامو کې ناڅې. دا نڅاوې او تر هغو زیات د نندارچیانو د لاسونو پړکا به تا کله اسمانونو ته یوسي. څه! هلته لاړه شه! خو کله ځمکې ته هم راځه او د خلکو د ژوند ننداره کوه!

د تیاروکوڅو د هغو ډمو ژوند وګوره چې په وچ نس او وچو لینګیو ناڅي.

زه د هغوی په ډلې کې وم. په هغو شپو کې، ستا د ماشومتوب په افسانوي شپو کې چې ته زما په آللو ویده کېدې او زه بیا هم ویښ پاتې کېدم، ستا مخ او خبرې ته مې کتل او د زړه درزهار مې دې شمېره. له ځانه مې پوښتل: چارلي، آیا داکوچنۍ نجلۍ به تا وپېژني؟

ته ما نه پېژنې، جرالډینې. هغه پخوانۍ شپې، هو... تاته مې کیسې کولې، خو هېڅکله مې تاته خپله کیسه ونه کړه. داکیسه په اورېدو ارزي ... د هغه وږي انسان کیسه چې د لندن په ډېرو تیټو او سپکو کوڅو کې به یې سندرې ویلې، نڅېده به او خیرات به یې ټولاوه. دا زما کیسه ده.

ما د لوږې مزه څکلې ده. ما د بې کورۍ دردګاللی او ترهغې زیات ما د هغه انسان رنځ احساس کړی چې له غروره یې سمندر په زړه کې څپې وهلې، خو د لاروي د خیرات یوې سکې د هغه غرور په اوبو لاهوکاوه.

له دې ټولو سره سره زه بیاهم ژوندی یم او له مرګه مخکې په ژوندیو پسې باید څه ونه ویل شي. زماکیسه ستا نه پکاریږي. ستا خبرې به وکړو.ستا په نوم پسې زما نوم راځي، چاپلین. په همدې نامه مې د ځمکې پر مخ له څلوېښتوکلونو څخه زیات خلک وخندول او هرڅومره چې هغوی وخندل ترهغوی ما پخپله ډېر وژړل!

جرالډینې، په کومې نړۍ کې چې ته اوسیږې، هلته یوازې نڅا او موسیقي نه ده.

د نیمې شپې پر مهال چې د تیاتر له پرتمین سالون څخه راوځې، هغه شتمن له یوې مخې هېر کړه چې لاسونه درته پړکوي او ستایي دې. د هغه ټکسي چلوونکي د حال پوښتنه وکړه چې تاکور ته رسوي. د هغه د مېرمنې پوښتنه وکړه. که مېرمنه یې امیدواره وي او د راتلونکي ماشوم د جامو پیسې نه لرې، د پیسو چیک را وباسه او په پټه یې د هغې د مېړه په جیب کې کېږده. ما په پاریس کې خپل د بانک استازي ته سپارښتنه کړې چې ستا دا راز لګښتونه په پټو سترګو ومني، خو د نورو لګښتونو اړتیا باید بیان کړي.

کله کله په سرویس یا میټرو کې په ښار کې وګرځه. خلکو ته وګوره او لږ ترلږه د ورځې یو ځلې ځانته ووایه چې: "زه هم د هغوی له ډلې څخه یوه یم."ګرانې لورې، ته د هغوی له ډلې

څخه یوه یې، نه له هغو څخه زیاته. مخکې تر دې چې هنر چاته د الوتلو وزرې ورکړي، زیاتره
ترې غبرګې پښې هم اخلي.

که کله هغه ځای ته ورسېدې چې یوه شېبه د خپلې نڅا له ننداره‌چیانو څخه ځان پورته
وګڼې، هماغه مهال صحنه پرېږده اوځان ژر پاریس ته ورسوه. ماته هغه ځای ښه معلوم دی.
هغه ځای د پېړیو پېړیو د مخه د کولیانو پسرلنۍ ځانګو وه. هلته به د ځان په څېر نڅاګرې
وګورې چې له تا څخه ښکلې دي، چالاکه دي او له تانه ډېرې مغرورې دي. هلته د "شانزلیزه"
ړندوونکې شغلې نشته.

د کولي نڅاګرو شغلې یوازې د سپوږمۍ رڼا ده. ښه ورته وګوره ایا هغه تر تا ښې نه ناڅي؟
ګرانې لورې، اعتراف وکړه. تل داسې یو څوک شته چې تر تا غوره ناڅي. تل داسې څوک
شته چې تر تا ښکلې وي.

په دې پوهه شه د چارلي په کورنۍ کې هېڅکله څوک داسې بې ادبه نه و چې کوم بېوزلي
ته ناوړه خبره وکړي.

ښایي زه ومرم او ته ژوندۍ واوسې. زما هیله داده چې هېڅکله بې وزله ژوند ونه کړې. له
دې لیک سره مل یوسپین چک درلېږم. هرڅومره پیسې چې غواړې پکې وېې لیکه او وایې
اخله. خو هرکله چې دوه فرانکه لګوې، ځانته ووایه چې دویم فرانک زما برخه نه ده. هغه د
یو نوموړکي برخه ده چې نن شپه ورته اړتیا لري.

د پیسو او شتو په اړه له دې امله درسره خبرې کوم چې زه د هغې بدوالی ښه پېژنم. ما ډېره
موده په سرکس کې تېره کړې. تل د هغه چا په اړه اندېښمن وم چې په یو نري پړي تلل، خو،
لورې، دا حقیقت تاته وایم چې د نري پړي په پرتله خلک د ځمکې پر مخ زیات لوېږي.

ښایي چې کله د نړۍ ډېر ښکلی الماس تا وغولوي. هغه شپه به دا الماس تا ته د سرکس د
پړي په څېر وي او تا به هرو مرو وغورځوي.

په زړو او ګاڼو زړه مه تړه، ځکه د دې نړۍ تر ټولو ستر الماس لمر دی. له نېکه مرغه دا
الماس د هرچا پر غاړه ځلیږي...

خو که کومه ورځ دې د یوچا د خبرې په لمر زړه بایلود، پاکه او له هغه سره یو زړه اوسه. مور ته مې دې ویلي چې په دې اړه درته لیک ولیکې. هغه مینه ترما ښه پېژني. هغه د یو زړه توب د پېژندنې لپاره ترما غوره ده. پوهېږم چې ستا کار ډېر ستونزمن دی.

پر ستیژ باندې له نریو وریښمینو جامو ښځه پرته بل څه ستا بدن نه پټوي. د هنر لپاره انسان د ستیژ سرته لوڅ لغړ راتلای شي، خو بېرته باید له مخکې ښځه هم پاك او سوچه راکښته شي. په دې نړۍ کې داسې هېڅ غوره شی نشته چې یوه نجلۍ دې د هغه لپاره خپل یو نوك هم چاته ښکاره کړي.

لوڅوالی زموږ د زمانې ناروغتیا ده. زه زوړ سړی یم، ښایي خبرې مې خندنۍ اوسي، خو زما په گومان ستا لوڅ بدن باید د هغه چا برخه وي چې تاته یې لوڅ روح گران دی. بده نه ده، که په دې اړه ستا فکر لس کاله د مخه وي، د ستر (حجاب) له مهاله مه ډارېږه! دا لس کاله تا نشي زړولای!!!"... .

د متن لنډیز:

چارلي چاپلین د نړۍ د سینما تکړه لوبغاړی و. هغه په خپل تمثیل بې شمېره خلك خندولي او ژړولي دي. نوموړي په ټولنې کې شته ناخوالې ډېرې ښې انځور کړي او په ډېره ورتیا یې ننداري ته وړاندې کړي دي.

لور ته د چارلي چاپلین په لیك کې د هغه مفکوره ډېره ښه غبرگه شوې. انساني جوهر یې درك کړی او هغه یې خپلې لور ته پوره څرگند کړی دی. چارلي انساني دریځ ته په ارزښت د هغه په ساتنې ډېر ټینگار کړی دی. لور ته د چارلي چاپلین په لیك کې په حقیقت کې ټولې نړۍ ته د چارلي پیغام نغښتی دی. هغه په ډېر جرات له هغو کړنو پرده پورته کړې چې سرته رسول یې بشر ته په ټولیز ډول د شرم او رسوایی خبره ده.



## فعالیتونه

۱ـ زده کوونکي دې په مناسبو ډلو وویشل شي. هره ډله دې پورته لیک له ځانه سره ولولي. د لیک له متن څخه دې اصلي پیغامونه راوباسي، ودې لیکي او د هرې ډلې استازی دې هغه نورو ته وړاندې کړي. ټول زده کوونکي کولای شي په موضوع آزادې خبرې اترې وکړي او خپل نظرونه بیان کړي.

۲ـ پنځه تنه زده کوونکي دې د ټولګي په وړاندې راشي او هر یو دې په خپل وار پورته لیک په خپله ژبه ووایي. نور زده کوونکي دې غوږ ورته ونیسي.

۳ـ ټول زده کوونکي دې د پورته لیک د متن له مخې د چارلي چاپلین د شخصیت په اړه فکر وکړي او بیا دې څو تنه هغه د نورو په استازیتوب په وار سره بیان کړي.

٤ـ چارلي چاپلین په سینماکې کمیډي او تراژیدي صحنې لوبولې. زده کوونکي دې فکر وکړي چې کمیډي او تراژیدي څه ته وایي او آیا موخه یې یوازې د خلکو خندول او ژړول دي او که بل څه؟ په دې اړه دې څو تنه زده کوونکي خپل نظرونه له بېلګو سره نورو ته وړاندې کړي.

۵ـ د زده کوونکو له ډلې څخه دې څلور تنه (کېدای شي تر څلورو زیات وي) د ټولګي په وړاندې په عملي توګه یوه، یوه کمیډي او تراژیدي ننداره نورو ته وړاندې کړي. نور زده کوونکي دې د هغو اصلي پیغام په ګوته او له خپل نظر سره دې وړاندې کړي.



## کورنی دنده

هر زده کوونکی دې د نورو له مرستې پرته یوه لنډه کمیډي یا تراژیدي ټوټه ولیکي. د خپلې ټولنې یا ولس موجود حالت دې پکې تمثیل کړي او په بله ورځ دې نورو ټولګیوالو ته واوروي.



# نشه يي توکي (هيروين)







د زلميتوب دوره په رواني لحاظ ډېره حساسه دوره ده. که يو څوک په دې دوره کې بې لارې شو، نو پايله به يې د ډاډ وړ نه وي. په دې دوره کې ځوانان ډېر زيات تر تقليد او د بل د پيښو تر اغېز لاندې راځي. که په دې پېر کې هغوی ته پوره پام ونشي، ښايي په غير شعوري توگه په ډېرو بدو لارو روان او تر څو چې ورته د لويانو پام کېږي، کېدای شي خپل ځان او ټولنه له يو لړ ستونزو سره مخامخ کړي. د نشه يي توکو کارونه او پر هغې باندې روږدي کېدل هم زياتره له همدې مهاله پيل کېږي.

- تاسو به په خپل گاونډ کې په نشې کوم روږدی سړی ليدلی وي، د هغه ژوند درته څنگه معلوميږي؟

د نشه يي توکو د کاروني پر بنسټ په ټولنې کې رنګارنګ اخلاقي او جنايي جرمونه رامنځ ته کېږي. په نشه يي توکو روږدي کېدل نه يوازې د سړي شتمني له منځه وړي، بلکې ټوله کورنۍ او آن ټولنه له خطر سره مخامخ کوي. دا توکي زياتره په کورنيو کې د ښځې او مېړه د جلا کېدو او د کورنۍ د ټوټه کېدو لامل کېږي. پر نشه يي توکو او الکولو روږدي کېدل د سړي جسمي، ذهني او اخلاقي روغتيا له منځه وړي او سړی په يو بيکاره او لټ موجود بدلوي. هغه نه يوازې دا چې د مسووليت احساس نه کوي، بلکې د خپلې کورنۍ حيثيت هم له ګواښ سره مخامخ کوي. په ټولنه کې د يو شمېر شرايطو د چمتو کېدو له امله انسان د يو شمېر نشه يي توکو په کارولو اخته کېږي چې څرګند جرم ګڼل کېږي. د دې توکو د کاروني مخه بايد ونيول شي. پر نشه يي توکو او الکولو باندې د يوه غړي روږدي کېدل کولای شي په مستقيم ډول د ځوانانو او کوچنيانو په چال چلند اغېز وکړي او له نشه يي توکو سره د هغوی د مينې لامل شي. که د روږدي کيدا لامل يې نشي، خو بيا هم د کورنۍ پر اخلاقي وضعې باندې ناوړه اغېز کوي. روږدې مور يا پلار يوازې د خپلې نشې په سوچ کې وي او د خپلو اولادونو په نسبت د مسووليت احساس نه کوي.

هيرويين يو ډېر قوي او مرګوني نشه يي توکي دي. د مورفينو پنځه برابره مسموموونکی زور لري او ډېر ژر پرې سړی روږدی کېږي. له اپينو څخه لاس ته راځي. په ۱۸۷٤ م کال کې يو انګليسي پوه کشف کړ. په ۱۸۹۰م. کال کې يو شمېر جرمني پوهانو پرې نوې څېړنې وکړې او دا توکی يې پر نري رنځ او تنفسي ناروغيو اخته کسانو او همدارنګه پر مورفينو روږدو کسانو ته تجويز کړ. په ۱۹۹۰م. کال کې عملاً پر مورفينو باندې د روږدو کسانو لپاره وکارول شو. دا يو ډېر قوي نشه يي توکی دی.

لکه د مخه چې مو وويل د مورفينو پنځه برابره مسموموونکی دی، نو د يو روغتيايي توکي په توګه وپېژندل شو؛ ځکه کله چې به پر مورفينو باندې روږدو کسانوته ورکول کېده، د مورفينو اغېز به يې ډېر ژر ليرې کاوه، خو وروسته د ډاکټرانو پام دې ټکي ته واوښت چې دا توکي تر نورو توکو ځو ځو وارې خطرناک او مرګوني دي. له مورفينو څخه يې د روږدي کېدو ځواک زيات دی؛ ځکه ٦۰ ميلي ګرامه ورځنی لګښت يې سړی په دوو اوونيو کې

په بشپړ ډول روږدی کوي. په روږدي سړي کې له ۸ څخه تر ۱۲ ساعتونو وروسته بېرته د هغې کارونې ته زیاته لېوالتیا پیدا کېږي. له هیرویینو څخه د لومړي ځل لپاره په ۱۸۹۸ م کال کې د سپین رنګه پوډرو په توګه کار واخیستل شو او ورو، ورو ورسره د اخیستونکو جسمي او رواني تړاو پیدا شو. د دې توکي په نه تر لاسه کېدو روږدي شخص ته کانګې، د ځان خوږ، سربدالي، د بدن د دفاعي سیستم کمزورتیا، خپګان، مړاویتوب او غلی والی، د کمزورۍ احساس، سخته لړزه، د اوښکو او پوزې بهېدل، جنسي کمزوري او د حافظې کمزوري، د ستړیا او ستومانۍ احساس او نس ناستی پیدا کېږي. که پر هیرویینو باندې روږدي شخص ته تر ۳۶ ساعتونو پورې هیرویین ورنه کړای شي، لاس او پښې یې سختې رپیږي، خوب نه ورځي او له ارادې پرته کوکارې وهي. ستړیا او بېحالي پرې غلبه مومي او آن تر دې چې له ځایه سر نشي پورته کولای. که دا کار لږ دوام ومومي، نو د مرګ خطر یې شته دی.

د شمېرنو له مخې د نړۍ د اپینو زیاته برخه په افغانستان کې تولیدیږي. له همدې امله د روږدو کسانو شمېر هم په افغانستان کې زیات او له یوې ورځې نه بلې ته لاپسې ډېرېږي. د شمېرنو له مخې پر هیرویینو باندې زیاتره روږدي اشخاص ځوانان دي چې له ۱۸ – ۳۰ کلونو پورې عمر لري. پر نشه یي توکو باندې د اخته کسانو د مړینې شمېر په هغو ځایونو کې ډېر زیات دی چې هلته د کوکنارو کرکیله کېږي او اپین تولیدېږي.

نن دې مرګونو توکو ښوونځیو او د ځوانانو مرکزونو ته لاره پیدا کړې او زموږ د زړه ټوټې ماشومان او تنکي ځوانان پرې اخته کېږي. پدې برخه کې د میندو، پلرونو او ښوونکو دنده ډېره مهمه ده. هغوی باید پرې نه ږدي چې د زړونو ټوټې او د سترګو کسې یې د دې چټلو توکو په کارونې اخته شي. باید د هغوی له مرګوني او خطرناکو پایلو څخه یې خبر کړي. د اسلام د سپېڅلي دین احکام، ټولنیز او اقتصادي او د طبابت له مخې د هغوی بدني او روحي زیانونه ورته بیان کړي. د هغو خلکو حالت دې ورته په خپلو سترګو وروښیي چې عملا یې ټولنیز، اقتصادي او روغتیایي زیانونه لیدلي دي او د کورنۍ او ټولنې د شرم لامل او

د اوږو بار يې ګرځېدلي دي. په همدې توګه ګران زده کوونکي دې د خپلې ټولنې او کورنۍ غړي، خپلوان، ملګري او انډيوالان د دې توکو له روږدتيايي، اقتصادي او ټولنيزو زيانونو او په تېره بيا د اسلام د سپېڅلي دين له مخې د نشه يي توکو د راکړې ورکړې، کارونې او پېر او پلور له ناروا والي څخه خبر کړي. د احساس لرونکو ځوانانو په توګه دې هغه پيغامونه د تبليغ، خبرو اترو، ليکنو او نورو له لارې د خپلو هېوادوالو غوږونو ته ورورسوي چې د سګرټو، نسوارو، چلم، اپين، هيرويين، مورفين او نورو نشه يي توکو په اړه يې په ښوونځي کې زده کړي دي.

د متن لنډيز:
هغه څوک چې نشه يي توکي کاروي او له هغې پرته ژوند نشي کولای، د روږدي يا معتاد په نامه يادېږي. له بده مرغه په افغانستان کې د معتادينو شمېر ورځ په ورځ زياتېږي. زياتره دا هغه ځوانان دي چې عمرونه يې له ۱۸ څخه تر ۳۵ کلونو پورې دي. خلک هغوی د هيروييني يا پوډري په نامه يادوي. پوډريان له ټولنې څخه وتلي خلک دي. خلک ورڅخه کرکه کوي او د يو مجرم سړي په سترګه ورته ګوري. هغوی د خپل ځان دښمنان او د ټولنې د اوږو بار دي. په حقيقت کې روږدي کسان هغه څوک دي چې رواني ستونزې لري؛ د نشه يي توکو له زيانونو څخه خبر نه دي؛ له ناسمو خلکو سره ناسته ولاړه لري؛ ټولنيز او اقتصادي محروميت لري؛ د کورنيو ستونزو له کبله او سره لاس او ګرېوان وي؛ ميندې او پلرونه يې په همېشني تاوتريخوالي کې ژوند کوي او په غير ارادي توګه د نشه يي توکو په دام کې نښتي وي. د ټولنې د ټولو افرادو، دولتي او نا دولتي موسسو ګډه مسؤوليت دی، يو له بل سره په ګډه له روږدو کسانو سره مرسته وکړي چې له دې مرګوني رنځ څخه ځانونه راوباسي. همدا شان هڅه وکړي په هېواد کې د کوکنارو د کرکېلې مخه ونيسي چې د دې مرګونو توکو زېږوونکې ده. ځوانانو او وزګارو خلکو ته د کار لازم فرصتونه چمتو کړي؛ په ټولنې کې پر نشه يي توکو د روږدو کسانو لپاره د درملنې لارې چارې برابرې کړي چې د تل لپاره له دغه رنځ څخه خپله ټولنه وژغوري.

## فعالیتونه

۱ـ د زده کوونکو له ډلې څخه دې څو تنه په وار پر ببلا بېلو نشو باندې د اخته کسانو ژوند او حرکتونه تمثیل کړي.

۲ـ په ټولنې کې پر نشو باندې د اخته کسانو شخصیت او د هغوی ټولنیز دریځ څنګه وي؟ څو تنه دې په خپله خوښه د نورو په وړاندې د هغې په اړه خبرې وکړي.

۳ـ زده کوونکي دې په ټولګي کې یوه غونډه جوړه کړي. د غونډې مشر، د مشر مرستیال، منشي او ویاند دې د رایو له مخې وټاکي. پنځه تنه ویناوال دې د بېلابېلو نشه یي توکو په اړه خبرې وکړي. د غونډې په پای کې د نشه یي توکو د کر کیلې، تجارت، لېږد او پر هغې باندې د روږدي کېدا په اړه دې یو پرېکړه لیک غونډې ته وړاندې کړي. کېدای شي د زده کوونکو له ډلې څخه یو تن د غونډې بهیر وارزوي او رغنده وړاندیزونه وکړي.

٤ـ که ستاسو په چم اوګاونډ کې پر نشې کوم اخته سړی اوسیږي، تاسو له هغه سره څنګه چلند کوئ او خپلو ملګرو او کلیوالو ته له هغه سره د چلند په اړه څه لارښوونه کوئ؟ درې تنه زده کوونکي دې د نورو ټولګیوالو نظرونه واوري او هغه دې توحید او نورو ته دې وړاندې کړي.

٥ـ پر نشې روږدی یا معتاد چاته ویل کېږي؟ پر نشې باندې د روږدي کېدو لاملونه کوم دي؟ زموږ هېواد څومره له دې ستونزې سره لاس او ګرېوان دی؟ د زده کوونکو درې ډلې دې پر دې موضوعاتو بحث وکړي او خپل نظرونه دې ټول ټولګي ته وړاندې کړي.

د بریالیتوب شرط د پیاوړې ارادې لرل دي. تصمیم د بري لومړی شرط دی.

((د ورځې یوه خبره))





زده کوونکي دې د کوکنارو د کرکیلې د مخنیوي او بزګرانو ته د قناعت ورکولو په اړه خپل نظر په یوې مقالې کې ولیکي او په بله ورځ دې نورو ټولګیوالو ته واوروي.

لاندې شعر ولولئ او خوند ترې واخلئ:

سیم و زر په ملک کې نه لرم نادار یم | په دولت د زړه تر حده دنیا دار یم
وظیفه د حق له دره رارسیږي | کله سپي غوندې طامع د بل د یار یم
د مخ آب مې په سوال سره توی نشو | پوشیده په صدف در غوندې آبدار یم
قناعت له نا اهلانو بې پروا کړم | په دې ګنج سره سرخروی لکه انار یم
دار مدار د هیڅ ظالم کولای نشم | ځکه تل د هر خودبین د سترګو خار یم
تر همای بلند نظر یم که باور کړې | کرګس نه یم چې جیفې ته هوادار یم
نه مګس یم چې پر غوړه کاسه مبتلم | نه دعوت وته د چا په انتظار یم
نه پرځان باندې منت د هر نامرد ړدم | نه یم خر چې د ګازر په جامو بار یم
مملکت د نومیدۍ مې رب نصیب کړ | په معنا کې په راحت تر شهریار یم
د اغیار په صورت اور یم چې لګیږم | لکه ګل تر و تازه په لاس د یار یم
بنده ګي د بل صاحب راځخه نشي | خاص بنده زه پیر محمد د کردګار یم

پیر محمد کاکړ

د نورو په عیبونو سترګې پټې کړئ، پر ځای یې خپلو عیبونو ته پام وکړئ. هغه فرصت چې د نورو د عیبونو په سپړلو کې تېروئ، په هغې کې خپل عیبونه اصلاح کړئ.

# دروغجنه ونه

هره انساني ټولنه د اخلاقو یوه ټولګه لري. دا اخلاق د هغې ټولنې بنستیز ارزښتونه جوړوي؛ د ټولنې د غړو په ورځنیو فعالیتونو کې راڅرګندیږي او بشري بنسټ پیاوړی کوي. اخلاق دوه اړخه لري: نېک او بد. نېک اخلاق په هر ځای او هره ټولنه کې منلي وي. بد اخلاق د هیچا نه خوښیږي او کرکه ترې کوي. د ټولنیزو فرهنګونو له مخې کېدای شي په یوه ټولنه کې یو کار د منفي اخلاقو په لیکه کې وشمېرل شي، خو بیا همداکار په نورو فرهنګونو کې د هغې ټولنې د معیارونو له مخې ناوړه نه بریښي. له دې سره سره داسې اخلاق شته چې په ټولو ټولنو او فرهنګونو کې ورته په یوه سترګه کتل کېږي. رښتینولي، صداقت، ښېګڼه، میړانه او دې ته ورته نور د غوره اخلاقو داسې بېلګې دي چې هر شخص، هرې ټولنې او هر فرهنګ ته منلي دي. له بلې خوا دروغ، منافقت، په وعده نه وفا، غلا، غیبت او نور داسې کړنې دي چې د نړۍ په ټولو ولسونوکې ناوړه بلل کېږي. دلته د خیانت او دروغو د زیان په اړه د "کلیله او دمنه" له کتاب څخه یوه کیسه راوړل کېږي. وایي ترهغه چې بدي شته، نیکې پاتې کېږي او تر هغه چې تورتم وي، رڼا خپل رنګ له لاسه نه ورکوي.

تاسو پوهېږئ چې د دروغو یا منافقت پایله څه شی ده؟

د اوړي ګرمي وه. کريم او جمال په يوې دښتې کې روان وو. چېرته کلی، کور او وداني نه ليدل کېده. کريم تر جمال لږ څه ډنګر او ساده و. هغه مخکې او جمال ورپسې روان و. کريم شاته وکتل، ډېره لار يې وهلې وه. د دښتې په شګوکې يې د خپلو پښو پلونه وليدل چې د مېرېانو د لارې په څېر يې يوه نرۍ لاره جوړه کړې وه. کلو او بانډو ته لږه لار پاتې وه. څو دقيقې وروسته هلته رسېدل. ښار کلو ته نژدې پروت و. کريم ودرېد او جمال ته يې وويل: "لږه لار پاتې ده. کلو ته چې ورسېدو، لږه دمه به وکړو، بيا به خپلو کورونو ته لاړ شو. د سخت باد او توپان له امله مو اوښان ورک شول. نه پوهېږو اوس به چېرته وي. ژوندي به وي که کوم ځناور به خوړلي وي؟" جمال چې له سترېا يې سا تنګه، تنګه کېده، وويل: "زموږ ټوله شتمني هماغه اوښان وو، نور څه نه لرو. نه پوهېږم څه وکړو. کاشکې پيدا کړی مو وای."

کريم وويل: "چېرته دې لټول؟ ته څه پوهېږې چې هغه چېرته تللي دي؟" جمال په نهيلۍ وويل: "نه پوهېږم، خو زړه مې په اوښانو پسې سوځي."

لږ وروسته کلي ته ورسېدل. هلته يې يوه چينه وليده. د چينې د پاسه يوه لويه ونه ولاړه وه. څانګې او ښاخونه يې هرې خواته غځېدلي وو. يخ سوری و. تر ونې لاندې يخه چينه وه. چينې ته لاړل، د دښتې تودوخې ډېر تږي کړي وو. لومړی يې مخ او لاسونه پرېمنځل بيا يې اوبه وڅښلې. کريم وويل: "خدايه، د اوبو په څېر ستر نعمت نشته!" جمال په ټوکو ورته وويل: "يو ورک شوی اوښ هم نه؟"

کريم په تريو تندي ورته وويل: "آه، د زړه پر ټپ مې مالګه مه دوړوه!"

کريم او جمال دواړه ډېر ستړي شوي وو. خوب ورته ورغی. ويده شول. څو ساعته تېر شول. کريم سترګې وغړولې. ميده ميده باران ورېده. زړه يې نه کېده چې پاڅېږي، خو بايد خپلو کورونو ته يې ځانونه رسولي وای. ودرېد، ملا يې تاوه راتاوه کړه، سترېا يې وايسته. مخامخ يې سترګې په يوې کڅوړې ولګېدې. ورغی او پورته يې کړه. کڅوړه درنه وه. ويې ښنډله، د سکو ترنګار يې واورېد. کڅوړه يې بېرته کړه. "او خدايه، سره زر!" باور يې نه کېده.

کڅوړه له سرو زرو ډکه وه. د اوښانو غم یې له یاده ووت. په دې سرو زرو سلګونه اوښان کېدل. جمال ته ورغی او غږ یې ورته وکړ: "جماله، جماله، پاڅېږه!" جمال په ډډه واوښت، سترګې یې پرانیستې. کریم ته یې وکتل. بېرته یې سترګې پټې کړې. کریم بیا وخوځولو او ورته یې وویل: "پاڅېږه! وګوره چې څه شی مې موندلی، پاڅېږه!"

جمال سترګې وغړولې. د کریم په لاس کې یې کڅوړه ولیده. کریم کڅوړه وخوځوله. د سکو ترنګار بیا پورته شو. جمال ټوپ کړ اوکڅوړې ته یې لاس کړ. خوب یې نه لیده، په رښتیا د سرو زرو کڅوړه وه. ویې پوښتل: "دا کڅوړه دې له کومه کړه؟ هغه چېرته وه؟"

د کریم خوله له خندا ډکه وه. ویې ویل: "تر هغې ډبرې لاندې. لومړی مې وانګېرل چې چا به ایښې وي، هاخوا دې خوا مې وکتل، هېڅوک مې ونه لیده. فکر مې وکړ چې خدای ﷻ د اوښانو بدله راکړې ده."

جمال ته څمکې ځای نه ورکاوه. ناکرار و. ویې ویل: "ته رښتیا وایې؟ اوس نو دا زموږه کڅوړه ده؟ ښه به دا وي چې په اړه یې سوچ وکړو!"

کریم ډېر ساده سړی او په ملګرتوب کې وفادار و. ځواب یې ورکړ: "سوچ ته اړتیا نشته. اوس یې په خپل منځ کې ویشو. نیمې یې ستا او نیمې یې زما."

جمال خپل ملګری ښه پېژانده او د هغه ساده ګي ورته ښه معلومه وه. فکر یې وکړ او ویې ویل: "ما ته یو چل راغی. که ټوله کڅوړه کور ته یوسو، ښایي خلک راباندې پوه شي او د غلا ګومان راباندې وکړي. اوس به لږې ترې واخلو او نورې به تردې ونې لاندې ښخې کړو. هر کله چې مو ورته اړتیا پیدا کوله، راځو به او لږې، لږې په ترې اخلو."

کریم ورسره ومنله. لږې سکې یې واخیستې او نوره کڅوړه یې تر هماغې غټې ونې لاندې په یو ځای کې ښخه کړه. ډبرې یې ورباندې کېښودې. د اوښانو د ورکېدو غم یې له یاده ووت. خوشحال، خوشحال کورونو ته رهي شول.

څو اونۍ تېرې شوې. جمال خپلې پیسې خلاصې کړې. نورو پیسو ته یې اړتیا پیدا کړه. د خپلې نقشې د پلي کېدو سوچ یې وکړ.

یوه ورځ د لمر لوېدو پر مهال له کوره ووت. هوا تیاره شوې وه. چا نه لیده. یو ساعت وروسته هاغه ځای ته ورسېد. شاوخوا یې په ځیر وکتل. څوک یې ونه لید. زړه یې کېده په بیړه کڅوړه راواخلي او ولاړ شي. په منډه ونې ته لاړ، ډبرې یې پورته کړې او کڅوړه یې راواخیسته. د کڅوړې پر ځای یې خاورې واچولې او ډبرې یې پرې بېرته هماغسې کېښودې. کڅوړه یې تر ملا وتړله او روان شو.

څو ورځې وروسته جمال د کریم کره لاړ. کریم ته یې وویل: "پیسې مې خلاصې شوې دي. راځه چې لاړ شو او لږې سکې راوړو."

کریم هم پیسو ته اړتیا درلوده. ورسره یې ومنله. دواړه پورته شول او د چینې پر لور رهي شول. جمال ورته په لاره وویل: "غوره داده چې د مخکې په څېر د اړتیا په اندازه سکې راواخلو او نورې بېرته ښخې کړو."

کریم ومنله. چینې ته ورسېدل. د ونې خواته لاړل، ډبرې یې پورته کړې. ځمکه یې وکنله، ډېرې خاورې یې لیرې کړې، خو کڅوړه نه وه. ځمکه یې بیا وکنله او خاورې یې هاخوا دې خوا لیرې کړې، خو کڅوړه یې ونه موندله. کریم په خپګان جمال ته کتل. جمال ډېر چالاک و. ښه تمثیل یې کاوه. څو شېبې وروسته یې وویل: "له ما او تا پرته د کڅوړې ځای بل چاته معلوم نه و. تا زما له باور څخه ناوړه ګټه اخیستې او کڅوړه دې له دې ځایه پټه کړې ده."

کریم هېڅ نه پوهېده. نهیلی و. په ډېر صداقت یې وویل: "ما دا کار نه دی کړی. باور وکړه، ما له تا سره هېڅکله خیانت نه دی کړی. کېدای شي هغه ورځ چا لیدلي واوسو چې دا کڅوړه مودلته ښخوله."

جمال حق په جانبه څېره نیولې وه، ویې ویل: "باور مې نه راځي. هغه ورځ تا هرې خواته ښه وکتل. هېڅوک هم نه و. اوس چې دې پیسې پټې کړي، غواړې ګناه د بل چا پر غاړه واچوې! زه ستا له لاسه قاضي ته ځم او شکایت کوم."

کریم او جمال دواړه تش لاسونه کورونو ته راغلل. کریم ډېر ناکراره و، خو د پیسو لپاره نه، بلکې د دې لپاره چې جمال یې په خبره باور نه کاوه. کریم ډېره هڅه وکړه چې جمال راضي کړي، خو نتیجه یې ورنه کړه. جمال د ښار قاضي ته لاړ او ټوله کیسه یې ورته وکړه.

قاضي پوه سړی و. ډېره تجربه یې لرله. د جمال خبرې یې اورېدې، خو کریم ته یې هم کتل. جمال ته یې مخ واړاوه او ویې پوښتل: "ډېر ښه! کڅوړه په خپل ځای نه وه. ته فکر کوې چې ملګري دې پټه کړې ده؟ آیا کوم شاهد هم لرې او که نه؟ "

جمال وویل: "هو، قاضي صاحبه، هغه ونه زموږ شاهده ده چې کڅوړه مو ورلاندې ښخه کړې وه."

جمال په خپله هم نه پوهید چې ولې یې داسې وویل. قاضي وموسکېد او ویې ویل: "ونه خو خبرې نشي کولای؟ تر اوسه مې د خبرې کوونکې ونې په اړه څه نه دي اورېدلي. سبا ټول هلته ځو او له ونې څخه به پوښتنه وکړم. اوس کورونو ته لاړ شئ."

هغه شپه جمال هېڅ خوب یو نه وړ. عجبه خبره یې کړې وه. آیا ونه هم خبرې کولای شي؟ سترګې یې د کوټې په چت کې ښخې کړې وې او په سوچ کې ډوب شوی و. له ځانه سره یې وویل: "سهار ته څو ساعته پاتې دي. باید یوه چاره وسنجوم. څه وکړم، ونه خو دروغ نشي ویلای. ولې مې دا دروغ وویل؟"

همداسې یې له ځان سره خبرې کولې. ناڅاپه یې یوې خبرې ته پام واوښت. له ځایه پورته شو او په منډه د خپل تره کور ته ورغی. تره یې ویده و، له خوبه یې ویښ کړ او ویې ویل: "کاکا، کاکا، ویده یې؟ ویښ شه!"

تره یې په وارخطایۍ وپوښتل: "څه چل دی؟ ولې په دې نیمه شپه کې راغلی یې؟"

جمال ورته وویل: "کاکاجانه، غواړم یو راز درته ووایم."

تره یې د راز د خبرې په اورېدو پورته شو او کېښناست. فکر یې وکړ کومه مهمه خبره ده. اندېښمن شوی و، ویې پوښتل: "څه چل دی؟ څه پېښ شوي؟"

وراره یې ټوله کیسه ورته وکړه. تره یې د جمال د خبرو له اورېدو وروسته وویل: "ښه

نو اوس به ستا د دې ناوړه کار په وړاندې څه وکړم؟ لومړی دې غلا وکړه او بیا دې دروغ وویل!"

جمال د خپل تره خواته نژدې شو او په زارۍ یې پیل وکړ، ورته وېې ویل: "ما داسې فکر کړی چې ته راسره هغې ونې ته لاړ شې. ونه ډېره غټه ده. لویې څانګې او ښاخونه لري. په ډډ کې یې لوی غار دی. ته راسره لاړ شه او د ونې په هغه غار کې پټ شه. سبا چې قاضي راغی او له ونې څخه د غل په اړه پوښتنه وکړي، نو ته به ورته د کریم نوم واخلې."

تره یې لومړی نه منله، خو د جمال له عذر او زارۍ وروسته د شپې په تیاره کې هغه چینې ته لاړل. تره یې د ونې په ډډ کې پټ شو.

سهار کریم او قاضي هم چینې ته ورسېدل. جمال ډېر ترهیدلی و، خو ډېر ژر یې خپله ترهه او ډار پټ کړ. جمال قاضي ته هرکلی ووایه. قاضي ترې وپوښتل: "هغه ونه کومه ده چې شاهدي ووایي؟"

جمال وویل: "قاضي صاحب، هغه ونه دغه ده."

قاضي ونې ته نژدې شو او وېې ویل: "ای غټې ونې، آیا ویلای شې ووایې چې د سرو زرو کڅوړه چا پټه کړې؟"

یوه شیبه وروسته له ونې څخه یو عجیب غږ راووت: "هوکې، قاضي صاحب، غل همدلته دی او هغه کریم دی!" کریم ډېر ډارېدلی و. قاضي ته په منډه ورغی او وېې ویل: "په خدای سوګند خورم، دا ونه دروغ وایي. ما دا کار نه دی کړی!" قاضي په موسکا ورته وویل: "پوهیږم. زاري مه کوه. لاړ شه او لږ خس راټول کړه."

کریم نه پوهېد چې قاضي څه غواړي. لاړ، لرګي یې راټول کړل او راغی. قاضي لرګي د ونې شاوخواته کېښودل او اور یې ورته کړ. له لرګو څخه لوګي پورته شول او د ونې شاوخوا یې ونیوله. د جمال بدن په رېږدا شو. د خپل تره په فکر کې شو. څو شېبې وروسته د جمال د تره کومی لوګو تریخ کړ. سترګې یې له اوښکو ډکې وې. په ټوخ، ټوخ د ونې له ډډ څخه

راووت او ولوېد. جمال له شرمه خړ اوښتی و. تره ته یې ورمنډه کړه.

قاضي وویل: "د خیانت او دروغو سزا بې آبي ده. تا په خپل کار هم خپله آبرو واخیسته او هم د خپل تره! اوس دې تره په شاکړه او په موږ پسې راځه!"

جمال ښه پوهېده چې ځای یې زندان دی. ډېر پښېمانه و، خو کومه چاره یې نه لرله.

د متن لنډیز:

په دې کیسه کې ټول پیغام په خیانت او دروغو څرخي. خیانت او دروغ د انسان حیثیت او وقار له منځه وړي. د خپلې کورنۍ او ولس په منځ کې یې سپکوي. انساني ارزښت له لاسه ورکوي. سبا په ټولنه کې ځای نه لري. څوك ورسره راشه درشه نه کوي او د شرم شېبې ورځې تېروي. انسان ته نه ښايي د بدو او ناوړو اخلاقو په لرلو ځان له انساني ليکې وباسي او خپل قدر اوعزت له لاسه ورکړي.



## څرګندونې

د "کلیله او دمنه" د کتاب نوم ښايي هرچا اورېدلی وي. نوموړی کتاب په اصل کې د سانسکریت (پخواني هند) په ژبه لیکل شوی او وروسته د پښتو ژبې په ګډون د نړۍ په بېلابېلو ژبو ژباړل شوی دی. هندي نوم یې "کرتکا ودمنه کا" دی. کلیله و دمنه د ژوند یو کتاب دی او کیسې یې د ژوند موجود حقیقتونه څرګندوي. ټولې کیسې یې روزنیزې او ډېرې خوندورې دي. پورته کیسه په لږ څه بدلون او لنډیز نوې وژباړل شوه.



## فعالیتونه

۱ـ درې تنه زده کوونکي دې په ټولنه کې د انساني شخصیت په پیاوړتیا کې د نېکو اخلاقو په اړه خبرې وکړي.

۲ـ د ناوړه اخلاقو زیانونه کوم دي؟ په ټولنې کې د یو دروغجن شخص دریځ څنګه وي؟ پنځه تنه زده کوونکي دې د ټولګي مخې ته راشي او د پورته پوښتنو ځوابونه دې نورو ته بیان کړي. په ترڅ کې که د زده کوونکو د دروغو په اړه کومه کیسه زده وي، نورو ته دې یې بیان کړي.

۳ـ دروغ له کومه ځایه پیلیږي، څنګه پراختیا کوي او څنګه یو انسان د هغې په اړه بې پروا کېږي؟ څو تنه زده کوونکي دې د څرګندو بېلګو په وړاندې کولو په دې اړه خبرې وکړي او خپلې سپارښتنې دې واوروي.

٤ـ دوه مخي او دوه رنګي څه زیانونه لري؟ دوه تنه زده کوونکي دې د هغې په اړه څرګندونې وکړي.

۵ـ څه کول په کار دي چې له ځانه نیولې بیا د ټولنې تر هر غړي پورې نېک او ښه اخلاق تعمیم اوپراخه شي؟ زده کوونکي دې په دې اړه فکر وکړي او په پای کې دې هر یو خپل، خپل نظر نورو ته وړاندې کړي.



## کورنۍ دنده

نېک اخلاق او د انسان د شخصیت په بشپړتیا کې د هغې پر ارزښت یوه مقاله ولیکئ.

کله چې هوس پر عقل بریالی شي، انسان کندې ته لویږي.

(حضرت علي کرم الله وجههُ)

# ارزاني خويشکی

په تېرو ټولګيو کې مو د هېواد د يو شمېر پوهانو، ليکوالو، شاعرانو او ملي مشرانو د ژوند په اړه معلومات لوستي دي. دلته غواړو د پښتو د يو بل شاعر او د روښاني غورځنګ د ليکوال د ژوند په اړه معلومات چمتو کړو. لکه څنګه چې د مخه ويل شوي، د پوهانو، ليکوالو او شاعرانو د ژوند او د هغوی د ليکنو لوستل موږ ته د هغه مهال د اوسېدونکو د نظر څرنګوالی او حال احوال بيانوي. ښه ده چې هغه په ځير ولولو او د خپل ژوند مشال يې کړو.

ارزاني په قوم خویشکی او د برهان زوی دی. د ده د نوم او تخلص په اړه زیاتې څېړنې شوې دي، خو تر اوسه د ده اصلي نوم او د زوکړې کره نېټه چا نه ده په ګوته کړې. څېړونکو یې د زېږېدو نېټه د ۹۲۹ هـ. ق (۱۵۲۳ م) شاوخوا بللې ده. ارزاني د پنجاب د قصور اوسیدونکی و. هغه د قصور له اولیاوو څخه شمېرل شوی دی.

ارزاني یو عالم او فاضل سړی و. پر پښتو سربېره د عربي، فارسي او هندي ژبو عالم و. د هغه له کلیاتو او د نثر له نمونو داسې بریښي چې نوموړی د اسلامي علومو، په تېره بیا د قرآن او حدیثو علم تر لاسه کړی و. ارزاني د تصوف په علمي او باطني دواړو اړخونو ښه عالم او عارف سړی و. د ارزاني له کلیاتو او د (بیان ګردش فلک) تر نامه لاندې له یو نظم څخه څرګندیږي چې هغه د نجوم او فلکیاتو له پوهنې هم یو څه برخمن و. ارزاني وایي:

دا فلک دایم په رقص
کله سعد کله نحس
سعد نحس په خپل بخت شي
څوک دې نه کا سره بحث
د فلک ګرځېد په پېچ دی
څوک یې هست شي څوک یې هیچ دی
دا برج ستوري اندازه وي
د هرچا قدر په خپل مېچ دی
د فلک چې ګردان نوم دی
د ستارو باندې هجوم دی
د فلک په کار پوهېږي
چې یې لوستی خپل نجوم دی

د روښاني پېر یو بل لیکوال او د روښاني غورځنګ مخالف، اخون درویزه، هم ارزاني د علم او فضل خاوند بللی دی. نوموړی د تصوف او معرفت له علومو سره آشنا و.

ارزاني خویشکی د پیر روښان د خلیفه ګانو په ډلې کې شامل و. پیر روښان هغه د

پادشاهانو او امیرانو پر ځای عام ولس ته د معرفت او د توحید د علم د ورښوولو لپاره هند ته لېږلی و. ارزاني خپل ټول عمر په هند کې تېر کړی دی. د وروستیو لاس ته راغلو معلوماتو له مخې د "پټنه" په ښار کې د هغه قبر او مشهور زیارت دی. د قبر پر ډبرې د هغه د مړینې نېټه ۱۰۲۸ هجري لیکل شوې ده.

ارزاني خویشکی پښتون او په قصور کې اوسېد. د پیر روښان د پیرۍ اوازه دومره خوره شوې وه چې د قصور له پښتنو پرته د هندوستان مېشت پښتانه هم ترې خبر شوي وو. کله چې ارزاني خبر شو، نو پښتونخوا ته راغی او د پیر روښان مرید شو. له مریدۍ او یوې مودې تېرېدو نه وروسته ارزاني د پیر روښان تر ټولو لومړنی صوفي او پوه ملگری او د روښاني تصوف تر ټولو لوی او ستر مبلغ شو.

د ارزاني ټوله شاعري د روښاني عرفان تشریح او توضیح ده او یو تبلیغي او دعوتي رنگ لري.

ارزاني وایي:

نن کامل لره وردرومه — د خپله چارکړه سر انجامه
دی به درکړي خفي ذکر — پرې مشغول اوسه مدامه

بل ځای وایي:

نن کــامل لره وردرومه — تابــه زر کاندې له مســه
که د پیر په امر چار کړې — ته به بند کړې پنځه حسه

همدا راز وایي:

دغه لوی نفس به زبر کړې — د کامــل پیــر لــه اثــره
د کامـــل په صحبت اوسه — تــا به خلاص کا له اژدره
د حـــیـــات اوبــه
بــه درکا د زنــده زړه لــه کوثــره
کـــه دغه اوبه دې وڅښې — تــه بــه والــوزې بــې پره
(نو بیا) حال به دې روزي شي — د کاملــو لــه بصــره

د توحـــيد مـــېوه به وخورې        د دغ ونــې لــه ثمـره
تـــر مـــقصوده بـــه ور نـشې        بې کامـل پيـر او رهبره
چې کـــامل پير دې روزي شي        د تا چار به شـينه بره ...
دې فـــقير غـــاړه اداکـــړه        و هرچا يـې ورکړه غوره
ارزاني پښـــتو صفـــت کـا        کل لــه الله اکبـره

د روښانيانو په تصوفي او ادبي مکتب کې ارزاني د ستر احترام او درناوي خاوند و. د پير روښان په عالمانو او پوهو ملگرو کې ارزاني د روښان تر ټولو ډېر ډاډمن شخصيت و. له دې امله ارزاني د پير ورښان د فکر او فلسفې تر ټولو زيات معتبر مفسر گڼل کېږي.

ارزاني يوعالم او فاضل سړی او تېز فهمه او فصيح شاعر و. د روښاني ادبي مکتب يوه درنه علمي او ادبي ستنه وه.

د نورو ليکنو ترڅنگ نوموړی لاندې ليکنې لري:

۱ــ پښتودېوان: څه ناڅه ۶۰۰۰ بيتونه لري. د تصوف او سلوک موضوعات پکې راغلي دي.

۲ــ مرات المحققين: دا کتاب په فارسي ژبه ليکل شوی او د پندونو په بڼه د تصوف اسرار او رموز بيانوي. دا کتاب څه ناڅه ۲۱۳ مخونه لري.

۳ــ د نثر رساله: دا يوه کوچنۍ رساله ده چې ۲۲ مخونه لري. په دې رسالې کې په لنډه توگه د معرفت ذکر شوی دی.

٤ــ ارزاني پر پښتو سربېره پر فارسي، عربي او هندي ژبو هم شعرونه ويلي دي او په دې ژبو کې د شعرونو ديوانونه لري... .

ارزاني يو صوفي او مذهبي سړی و. هغه د نوروعالمانو او د خپل وخت د دوديزو علومو له کبله دې ته اړ و چې په عربي او فارسي ژبو ليکنه وکړي. په هندي هم د هغه لاس ښه بر و، خو بيا يې هم په شعوري توگه په پښتو ويل او ليکل خپله دنده بلله، لکه چې وايي:

ارزاني په پښتو ووې　　　نن يې غاړه کړه ادا

د دې تر څنګ له نورو پښتنو څخه هم غوښتنه کوي چې پښتو سپکه ونه ګڼي او له پښتو ليکنو کرکه ونه کړي. وايي:

ارزاني پـښتو خــــبره　　ته يې مــــه ګـــڼه هــلکه
دا خـــبره کــــه پښتو ده　　څوك دې نه کا ځنې کرکه

له خپلې ژبې سره ارزاني خپل د مينې يو بل دليل راوړي او وايي:

دې مــــولا لـــه ډېره حبه　　رســـولان کـــړه لـه کتبه
هر رسول لـه کتاب راغی　　په خپل قـام د قام په ژبه

په بل ځای کې وايي:

که توفيق مې حق نصيب که　　زه به کــښم د حــــق ثنــــا
يــو ديوان په پښـــتو ژبـــه　　پر ډېرش حرف به کړم بنـــا
بل يادګار به مې شي پـــاتو　　دا پښـــتو رښـــتيا وينا

ارزاني خپل مذهبي او تصوفي دعوت په پښتو ژبه خپرولو. وګورئ:

کل صفت د خپل مـــولا کا　　په پښتو په څو څو طرحه
مـــوافـــقه له قـــــرآنه　　پښـــتو شـــوې ده عــجبه
دا خـــبره کــه پښـــتو ده　　دا په نص حديث ده صحه

ارزاني په خپل ديوان کې د پښتو او پښتون کلمې زياتې کارولې دي. له دې امله موږ ويلای شو چې ارزاني له پښتو او پښتونوالی سره زياته مينه درلوده. ارزاني وايي:

دا پښتو خـــــبره واوره　　لـــــــه دې ارزاني افـغانـه
ارزاني افـــغان وکــښلې　　د خــــپل زړه لــــه تصوره
يو وينـــا به کـــړم اغازه　　په پښتو به يې کـــړم سازه
پر کاغذ به يې زه وکــښم　　لـــه دې پښـــتـــــنيه رازه

ارزاني د عمر په وروستيو شپږو کې د خپل ژوند موخه داسې بيانوي:

ارزاني ضعیف دی جسم          خدای دې دا وینا کړه قسم
په پــښتو ژبه یې وکیښ          کل صـــفت د حـــق د اسم

د ارزاني له لاس ته راغلي پښتو نثر څخه جوتیږي چې نثر یې ډېر ساده او روان دی. د خیرالبیان په خلاف مسجع نه دی. د پام وړ خبره خو داده چې په ۶۱۲ هـ. ق. کال کې د سلیمان ماکو نثر روان او بیا وروسته د پیر روښان د "خیرالبیان" نثر مسجع بڼه لري، خو د ده په نثر کې د سجعې برخه هغومره درنه، نه ده.

دا لاندې بېلګه وګورئ:

"د سرې اندامونه خدای کړي دي. د هر اندام بخره شته. سترګې خدای کتو لره کړې دي او خوله خدای خبرو له کړې ده. او پوزه خدای دم لره کړې ده او غوږ خدای اوربدلو لره کړې دی. او پښې خدای یانه [یون، حرکت] لره کړي دي او زړه خدای یاد لره کړی دی."

د متن لنډیز:

ارزاني د پنجاب د قصور اوسیدونکی و. هغه د قصور له اولیاوو څخه شمېرل شوی دی.

ارزاني یو عالم او فاضل سړی و. پر پښتو سربېره د عربي، فارسي او هندي ژبو عالم و. د هغه له کلیاتو او د نثر له نمونو داسې بریښي چې نوموړی د اسلامي علومو، په تېره بیا د قرآن او حدیثو علم تر لاسه کړی و. ارزاني د تصوف په علمي او باطني دوارو اړخونو ښه عالم او عارف سړی و. د روښاني د پیر یو بل لیکوال او د روښاني غورځنګ مخالف، اخون درویزه هم ارزاني د علم او فضل خاوند بللی دی. نوموړی د تصوف او معرفت له علومو سره آشنا و. ارزاني خویشکی د پیر روښان د خلیفه ګانو په ډلې کې شامل و. پیر روښان هغه د پادشاهانو او امیرانو په ځای عام ولس ته د معرفت او د توحید د علم د ورښوولو لپاره هند ته لیږلی و. ارزاني خپل ټول عمر په هند کې تېر کړی دی. د وروستیو لاس ته راغلو معلوماتو له مخې د "پټنه" په ښار کې د هغه قبر او مشهور زیارت دی. د قبر پر ډبرې د هغه د مړینې نېټه ۱۰۲۸ هجري لیکل

شوې ده. د ارزاني ټوله شاعري د روښاني عرفان تشریح او توضیح ده او یو تبلیغي او دعوتي رنګ لري. د روښانیانو په تصوفي او ادبي مکتب کې ارزاني د ستر احترام او درناوي خاوند و. د پیر روښان په عالمانو او پوهو ملګرو کې ارزاني د روښان تر ټولو ډېر ډاډمن شخصیت و. له دې امله ارزاني د پیر روښان د فکر او فلسفې تر ټولو زیات معتبر مفسر ګڼل کېږي او د روښاني ادبي مکتب یوه درنه علمي او ادبي ستنه وه.

## فعالیتونه

۱ـ یو تن زده کوونکی دې د روښان د ادبي سبک او بل تن دې د روښاني دورې د لیکوالو او شاعرانو پر محتوا او موضوع باندې خبرې وکړي.

۲ـ دوه تنه زده کوونکي دې د ارزاني پر شعري ځانګړتیاوو وغږېږي. بېلګې دې وړاندې کړي.

۳ـ له پښتو سره د ارزاني مینه د هغه له کومو شعرونو څخه څرګندېدای شي؟ زده کوونکي دې د متن له مخې د هغې ځواب ومومي او دوه تنه دې پرې رڼا واچوي.

٤ـ په عمومي توګه د پښتو ژبې لپاره د روښاني غورځنګ ارزښت څه دی؟ درې تنه زده کوونکي دې څرګند کړي.

٥ـ پیر روښان ارزاني ته کومه دنده او ولې سپارلې وه؟ یو زده کوونکی دې پرې رڼا واچوي.

په یوې لنډې مقالې کې د ارزانې، زېږېدنه، مړینه، ځای، شعري ځانګړتیاوې او د ژوند څرنګوالی ولیکئ. په لیکنه کې د لیک پیل، منځ او پای په پام کې ونیسئ. د مقالې په پای کې د کارول شوي ماخذ یا ماخذونو نومونه ولیکئ.

لاندې نثر ولولئ او پر مفهوم یې ځانونه پوه کړئ:

## ناکامي

د ژوندانه د ناکامیو څخه مه مایوس کېږه!

هغه ژوند کامیاب ژوند نه دی چې تل کامراني لري. هغه خوشحالي سړی نه خوشحالوي چې د درد او خوږ په بیه نه وي اخیستل شوې! د ورځې رڼایي د شپې له تیارې څخه ده! د لیدو خوند د بېلتانه په غم کې او د ژوندانه فتحه د ژوند په ماتې کې ده.

هغه چې له خدایه ابدي راحت غواړي، هغه د یو داسې جنت آرزو لري چې هلته د لیدو لپاره سترګو پرانیتو او د خوړلو لپاره خولې ببرته کولو، او د اورېدو لپاره غوږ ایښودو ته اړه نه وي!.

تر څو چې ژوند ژوند دی، نو په دې کې برکت له حرکت څخه دی! ځکه: کامل سکون کټ مټ مرګ دی!

هغه چې وايي په دې دنیا کې بدي ولې شته، کمی ولې، او بندیزونه ولې؟ نو دی په حقیقت کې د نېکۍ د پرېمانۍ او آزادۍ قدر نه پېژني او د دې مرغلرو پوره قیمت ادا کول نه غواړي!

هر څومره چې یوه خوشحالي شانداره وي هغومره هغه لیارې هم سختې وي چې د هغې د حصول لپاره لنډېږي.

د ژوند ناکامي په حقیقت کې هغه کسان غواړي چې د کامیابی وړ وي.

اروابناد خادم



# د معلولیت عوامل











زموږ ټولنه د پرله پسې جګړو له امله له ډول ډول زیانونو سره مخامخ شوې ده. بې کوري، مرګ ژوبله، شل او شوټ کېدل او د دې ترخنګ نورو معلولیتونو یو شمېر وطنوال ځپلي او له تلپاتې کړاو سره یې لاس او ګرېوان کړي دي. معلولیت چې په هر ډول رامنځته شوی وي، پوره زړه سوي او مواظبت ته اړتیا لري. بنایي یو معلول انسان داسې ونه انګېري چې خدایﷻ مه کړه د ټولنې د اوږو بار دی، بلکې خپل دریغ د خلکو په زړونو او سترګو کې وګوري او باور ترلاسه کړي چې له هغوی سره د یو بشپړ انساني موجود په توګه چال چلند کېږي.

فکر وکړئ چې له یو معلول سره څه مرسته کولای شئ؟

معلولیت څه ته وایي؟

معلولیت په بدني یا ارواییي ځواک کې د نیمګړتیا موجودیت دی چې له امله یې د یو چا د عادي ژوند د ټولو یا ځینو فعالیتونو سرته رسول ستونزمن کیږي. کېدای شي معلولیت تر زیږیدو د مخه او یا له زیږیدو وروسته رامنځ ته شي. د معلولانو د حقونو لوظنامه، معلول د هغو کسانو په لیکه کې شمېري چې اوږد مهاله فزیکي او یا ذهني کمزوري ولري. په دې معنا چې د بېلا بېلو ستونزو درلودلو له امله د ټولنې د نورو وګړو په پرتله وروسته پاتې وي.

معلولیت دا لاندې بېلابېلې بڼې لري.

بدني، ارواییي، ذهني (په زده کړې کې ځنډ او رواني ناروغي)، حسي (د لیدلو او اورېدلو ستونزه) او مرکب (په یوه وخت کې له یو څخه د زیات معلولیت درلودل.)

## د معلولیت عوامل

کیدای شي د زیاتو لاملونو له مخې معلولیت رامنځته شي، خو عمده لاملونه یې په لاندې ډول دي.

۱ــ اکتسابي معلولیت: ټکر، پېښې یا طبیعي ناورینونه، جګړې، اور، مسمومیتونه او اوږدې ناروغۍ.

۲ــ مور ذاتي معلولیت: د مور ذاتي معلولیت لامل په دوو برخو وېشي.

الف: د امیندوارۍ د مهال معلولیت، لکه جینیتیکي عوامل، د مور خوارځواکي، د مور د عمر لوړوالی، د امیندوارۍ پرمهال د ځان پاک نه ساتل (د حفظ الصحې نه مراعتول)، د ایکس وړانګو ته ځان نیول، د درملو کارونه، د سګرټ څکول.

ب: د زیږیدنې د مهال لاملونه: ستونزمنه او په ځنډ زیږیدنه، په غیر صحي ډول زیږیدنه، د زیږیدو پرمهال پر ماشوم د فشار راتګ.

د مور ذاتي معلولیت د مخنیوي لارې چارې: د نژدې خپلوانو تر منځ د ودونو مخنیوی، د امیندوارۍ پرمهال د مور روغتیا پالنه، سم خوراک، له ۱۸ کلنۍ کښته او له ۳۵ کلنۍ پورته نه امیندواره کېدل، د امیندوارۍ پرمهال د درملو په خپل سر نه کارول، د امیندوارۍ

پر مهال ایکس وړانګو ته نه مخامخ کېدل، په بشپړ روغتیایي چاپېریال کې د روزل شوي فرد (دایې) تر څارنې لاندې د اولاد زېږول.

همدارنګه د بدني معلولیت د مخنیوي لپاره باید لاندې ټکي په پام کې ونیول شي:

- تر پنځه کلنۍ پورې د مرګونو ناروغیو په وړاندې د نوو زېږېدلو ماشومانو واکسینول،
- پر خپل مهال د ناروغیو په وړاندې وقایه او درملنه،
- له ځمکنیو ماینونو، ناچاودلو توکو او له جګړې څخه له راپاتې شوو شیانو څخه ځانونه لیرې ساتل،
- ناپېژندل شوو توکو ته لاس نه وروړل،
- د نشه یي توکو نه کارول.

له معلول سره د کورنۍ او ټولنې چلند: ښایي معلول شخص له نورو افرادو سره توپیر ولري، خو د یو چا له ناتوانۍ ډډه کول، نه یوازې له هغوی سره مرسته نه کوي، بلکې د هغوی ستونزې زیاتوي. کېدای شي معلول اشخاص داسې ستونزې ولري چې د هغوی د ځینو فعالیتونو مخه ونیسي یا ښایي هغوی یو شمېر کارونه په بل ډول سرته ورسوي. زیاتره معلول افراد کولای شي له زده کړې او روزنې وروسته د ژوند ډېر فعالیتونه له ډېر لږ توپیر یا تر نورو ورو سرته ورسوي. معلول دې ته اړتیا لري چې د هغوی وړتیا ومنل شي او له دې لارې پرځان باور پیدا کړي، نه دا چې له ژوند نهیلی شي.

د بدني او خوځښتي معلولیت لاملونه:

یو شمېر وګړي د ملا د تیر د کړپو یا مغزو د ګوزڼ له امله پر معلولیت اخته دي. ناروغۍ، ټکرونه، له لوړه ځایه لوېدل په یو چا کې د خوځښتي معلولیت لامل کېږي. له معلول شخص سره د چلند پرمهال باید د هغه نورو وړتیاوو ته پام وشي او زیار دې وایستل شي چې د هغوی نیمګړتیاوې جبران شي.

له رندو وګړو سره د چلند پرمهال باید زیار وایستل شي چې د هغوی فردي وړتیاوې پیاوړې شي. د داسې وګړو د نورو حواسو پیاوړي کول هغوی د چاپېریال له عواملو سره د مخامخ کېدو په صورت کې غښتلي کوي. د ژوند څرنګوالی او د کور دننه د کاروونې وړ توکي باید په داسې ځایونو کې کېښودل شي چې یو نابینا وګړای شي له مرستې پرته یې ومومي.

له کڼو وګړو سره د مخامخ کېدو په صورت کې باید له هغوی سره په داسې ډول خبرې وشي چې هغوی پرې پوه شي. د خبرو پرمهال باید ورته مخ واړول شي چې زموږ د شونډو له خوځښت څخه زموږ مطلب درک کړي. پر لوړ غږ باندې د خبرو له امله زموږ پر مطلب ښه نشي پوهېدای، ځکه زموږ د شونډو خوځښت نشي تعقیبولای.

ذهني وروسته پاتې اشخاص هغه خلک دي چې د ذهني فعالیتونو له مخې تر نورو همزولو وروسته پاتې وي. له دې امله د زده کړې وړتیاوو، له چاپېریال سره سمون، له تجربو څخه په ګټه اخیستنې، د مفهومونو په درک او په سم استدلال او قضاوت کې کمزوري وي.

د متن لنډیز:

معلول اشخاص د بشري ټولنې یوه برخه ده. له هغوی سره په ټولو حالاتو کې باید انساني چلند وشي. د هغوی معلولیت ورته په ګوته نشي. د ړانده، شل، شوټ او کاڼه او پر نورو ورته نومونو یاد نشي. له هغوی څخه د هغوی د وړتیا له مخې کار واخیستل شي. باید په دې پوه شي چې هغوی د ټولنې او نورو د اوږو بار نه دي، بلکې د بدني بیارغاونې او ښه چلند له لارې په ټولنې او کورنۍ کې خپل دریځ تر لاسه کولای شي. په ځان ویسا او ډاډ یې پیاوړی شي. هېڅکله دې ته پرې نه ښودل شي چې د نهیلۍ او یوازیتوب احساس وکړي.

## فعالیتونه

۱ـ زموږ په هېواد کې کوم راز معلولیتونه زیات او لاملونه یې څه دي؟ ټول زده کوونکي دې په دې اړه فکر وکړي او بیا دې د هغوی له ډلې څخه څلور تنه هغه په ګوته کړي.

۲ـ له یو معلول سره څنګه چال چلند وشي؟ څه وشي چې هغه ځان د نورو د اوږو بار ونه ګڼي؟ په دې اړه دې زده کوونکي فکر وکړي او بیا دې یو څو تنه د نورو په استازیتوب پرې رڼا واچوي.

۳ـ آیا معلولیت په عمومي ډول، یوه تلپاتې ستونزه ده او که د لنډې مودې؟ څنګه کولای شو، د بېلابېلو معلولیتونو د رامنځته کېدو مخه ونیسو؟ پنځه تنه زده کوونکي دې د ټولګي په وړاندې دې پوښتنو ته ځوابونه ووایي. د نیمګړتیا په صورت کې دې نور زده کوونکي په وار خپل نظر ورزیات کړي.

٤ـ زموږ په هېواد کې د جګړو په کلونو کې زیات خلک معلول شوي. تاسو د هغوی عمده لامل څه شی ګڼئ او د مخنیوي لپاره یې څه سپارښتنې لرئ. څلور تنه زده کوونکي دې د نورو په استازیتوب په وار سره خبرې پرې وکړي.

۵ـ یوه امیندواره ښځه باید د امیندوارۍ پر مهال څه وکړي چې ماشوم یې معلول و نه زېږي؟ درې تنه دې پرې رڼا واچوي.

## کورنۍ دنده

په جګړو کې د ځمکنیو ماینونو د اغېز او پرهغوی د بندیز په اړه یوه مقاله ولیکئ.

لاندې شعر ولولئ او خوند ترې واخلئ:

ستا د عشق له وينو ډک شول ځيګرونه
ستا په لاره کې بايلي زلمي سرونه
تاته راشمه زړګی زما فارغ شي
بې له تا مې اندېښنې د زړه مارونه
که هرڅو مې د دنيا ملکونه ډېر شي
زما به هېر نشي دا ستا ښکلي باغونه
د ډهلي تخت هېرومه چې را ياد کړم
زما د ښکلي پښتونخوا د غرو سرونه
د رقيب د ژوند متاع به تار په تار کړم
چې په توره پښتانه کاګوزارونه
د فريد او د حميد دور به بيا شي
چې زه وکاندم په هر لوري تاختونه
که تمامه دنيا يوخوا ته بل خوا يې
زما خوښ دي ستا خالي تش ډګرونه
احمدشاه به دغه ستا قدر هېر نه کا
که ونيسي د تمام جهان ملکونه
لوی احمدشاه بابا

ښايي د غلا او درغلۍ ځاله يوه ورځ ويجاړه شي، خو د رښتيا او امانت ماڼۍ ټينګه او پر خپل ځای ولاړه وي.

((حديث شريف))

# مراد علي صاحبزاده (رح)

د نړۍ ټول ولسونه د خپل تاريخ په پاڼو کې داسې څېرې او شخصيتونه لري چې ياد يې د هغو هېوادونو د وياړ او افتخار لامل دی. زموږ ګران هېواد افغانستان هم په دې برخه کې د ياد وړ ځای او د درنښت او افتخار تلپاتې څېرې لري.

دا هېواد د پېړيو په اوږدو کې د سترو نوابغو، پوهانو، ليکوالو، مفسرينو او سياستوالو د روزلو زانګو ده. بوعلي سينا، ابوريحان البيروني، مولانا جلال الدين بلخي، بايزيد روښان، خوشحال خټک، ميا فقيرالله جلال آبادي، سيد جمال الدين افغان او په سلګونو نور هغه شخصيتونه دي چې نه يوازې افغانستان، بلکې د خپلو علمي برياوو او فرهنګي خدمتونو له کبله د ټولې نړۍ د پوهو او ويښو خلکو په زړونو کې زانګړی ځای لري.

موږ په تېرو ټولګيو کې د دې راز نوميالیو له څېرو څخه يو څو تنه وپېژندل. دلته د مرادعلي صاحبزاده (رح) په اړه لنډ معلومات وړاندې کوو.

افغانستان د خپل خاص طبیعي او جغرافیایي جوړښت له مخې، لکه څنګه چې د آسیا زړه بلل شوی، همداسې د سیمې د پوهنتون حیثیت هم لري. د دې هېواد هره سیمه د پوهې او علم په روزلو کې ځانته برخه او بېلې ځانګړتیاوې لري او هرې یوې یې د یاد او افتخار وړ شخصیتونه په خپله غېږ کې روزلي دي.

لوی ننګرهار له دغو سیمو څخه یوه ده. ننګرهار، د علم او ادب دې زانګو، په خپلې غېږ کې داسې اشخاص روزلي چې نن یې په یاد د افغانستان ټول ولسونه ویاړي. سید جمال الدین افغان چې د ده له ترقۍ غوښتونکو عالمانه نظریاتو څخه ټول اسلامي او اروپایي هېوادونه برخمن شوي او د هغه په ویاړ کې ځان شریک بولي، له دغه سیمې څخه سر راپورته کړی دی. میافقرالله جلال آبادي په همدې ټاټوبي کې خاپوړې کړي او بایزید روښان د دې ځای د خلکو په مرسته د غلیمانو په وړاندې درېدلی دی. د دې ترڅنګ چې یو شمېر خلکو توره چلولې او غلیمان یې له خاورې شړلي، نورو قلم راخیستی او د پرګنو ذهنونه یې روښانه کړي. ځینو بیا د تورې ترڅنګ قلم هم راخیستی او په خپل پلرني ټاټوبي کې یې د پوهې او ثقافت ډېوه روښانه ساتلې ده.

مراد علي صاحبزاده رحمة الله علیه له دغو اشخاصو څخه یو دی. دی د افغاني ټولنې د پوهانو، عالمانو، لیکوالو، مفسرینو او تلپاتې څېرو څخه یوه روښانه څېره ګڼل کېږي. هغه څه چې دی تر نورو زیات د خلکوزړونو ته نږدې کوي او قدر او ارزښت یې زیاتوي، هغه پر پښتو ژبه د آسماني کتاب، پاک قرآن، ژباړل او تفسیرول دي. له دې امله یې په خاصو او عامو پښتنو کې مقبولیت موندلی دی. سره له دې چې په دولسمې او دیارلسمې هجري پېړیوکې د پښتو تفسیرونو د لیکلو ډېرې هڅې شوې او لیکل شوي دي، خو یو یې هم هغومره مقبولیت نه دی موندلی، لکه د مرادعلي صاحب تفسیر چې موندلی دی.

مرادعلي صاحبزاده د ۱۲۲۳ هجري قمري کال په شاوخوا کې د ننګرهار ولایت د کامې ولسوالۍ په یوې علمي او روحاني پښتني کورنۍ کې زېږېدلی دی. د پلار نوم یې حضرت عبدالرحمن سیلاني دی چې په فقیر صاحب شهرت لري. د مراد علي صاحب کورنۍ په صاحبزادګانو یادیږي. هغه کلی چې دوی استوګنه پکې لري، د فقیر صاحب د

ورثې په نامه مشهور دی. فقیر صاحب پر علم او پوهې سربېره د روحانیت او طریقت د درجې څښتن هم و. په خپله سیمه کې ورته خلک ډېر ارادت لري.

فقیر صاحب د امیر شېرعلي خان د پاچاهۍ په زمانه کې ژوند کاوه او ویل کېږي چې په لومړي سر کې یې اړیکې له امیر سره ښې نه وې، خو کله چې امیر ته د ده د روحانیت درجه څرګنده شوه، ده ته یې رجوع وکړه او د مرستې او د سلا مشورو غوښتنه یې ترې وکړه. ویل کېږي چې سیدجمال الدین افغان په کامه کې څو څو ځلې له فقیر صاحب او د ده له زامنو سره لیدلي کتلي او پښتو ژبې ته د توجه او د هغې په ترویج او پیاوړتیا کې د هلو ځلو په اړه سید جمال الدین افغان د دوی پیغام امیر ته رسولی دی.

مراد علي صاحب په یوه روښانه، په علم او پوهه مینه، روحاني او مذهبي کورنۍ کې زېږېدلی دی. دی د یو خاص نبوغ او استعداد خاوند و. له دې امله د پلار تر ځانګړې پاملرنې لاندې و. فقیر صاحب خپل زوی ته سپارښتنه وکړه چې د عربي ژبې په زده کړه کې ډېر زیار وباسي. په دې توګه په لږه موده کې مرادعلي صاحب د پلار له سپارښتنې سره سم عربي ژبه زده کړه او له عربي کتابونو څخه د زده کړې زمینه ورته برابره شوه.

مرادعلي صاحب له خپل پلار څخه پر زده کړې سربېره د سیمې له نورو متبحرو پوهانو، دیني عالمانو او متفکرینو څخه هم زده کړه ترلاسه کړه. ده په لږه موده کې د خپل وخت دوديز علوم، لکه: صرف، نحو، منطق، حکمت، فقهه، تفسیر، میراث، عروض، قافیه او بدیع زده کړل. مرادعلي صاحب پر خپلې مورنۍ ژبې، پښتو سربېره په دري او عربي پوهیده. د قرآن حافظ هم و. په پښتو، دري او عربي ژبو یې زیات کتابونه لیکلي او په زړه پورې خواږه اشعار یې ویلي دي.

مراد علي صاحب خپل ټول ژوند د علم زده کړې، تدریس او د اثارو لیکلو ته ځانګړی کړی او ډېر ارزښتناک کتابونه یې لیکلي دي. د مرادعلي صاحب له کورنۍ څخه تر لاسه شوو اسنادو له مخې د هغه د آثارو شمېر تر شپږو، اوو زیات دی او په پښتو، عربۍ او دري ژبو لیکل شوي دي. یو شمېر یې دا دي:

۱_ ارثیه او تراثیه: په اصل کې دوه کتابونه دي. یو یې اصل او بل یې شرح ده او د میراث

د علم په اړه ليکل شوي، چاپ نه دي.

۲ـ رساله علم العروض: دا رساله په منظومه توګه ترتيب شوې ده.

۳ـ صلواتيه: په دې رساله کې ليکوال د لمونځ د عربي عبارتونو جوړښت او صيغې ښوولي او په پای کې يې د لمونځ ژباړه په پښتو او دري ژبو راوړې ده. دا کتاب په ۱۲٦۸ هجري کال په پېښور کې چاپ شوی دی.

٤ـ د عربي صرف او ابجد خوانی په نامه يوه رساله ده چې په نوې لار يې په پښتو ژبه تر صرف ميره په خورا آسانه او روانه ژبه ليکلې ده.

۵ـ خطبې: مختلفې خطبې او موعظې دي چې په پښتو نظم ليکل شوې دي. دا خطبې تر اوسه نه دي چاپ شوي.

٦ـ رساله اسماني متبرکه اصحاب بدر: په دري ژبه يوه منظومه رساله ده.

۷ـ تفسير يسير: د مرادعلي صاحبزاده تر ټولو ارزښتمن او مشهور کتاب تفسير يسير دی. مرادعلي صاحب د تفسير يسير په اړه په عربي، دري او پښتو يو نظم ليکلی دی چې پښتو برخه يې په لاندې ډول ده:

پاخبـېـره ای مـراده چې شـپېتم دې شـو داکال
پنجي دې کـړه مضبوطې په تفسـير او په قرآن
ښـايي چـې دې دا سـعې کـه مقبوله کـردګار
خلعــت دې مغفـرت که در په غــاړه په رضوان
کوتـاه وايـه الفـاظ چې اسـان شـي پـه هر چا
تقريـر کـوه واضح چې بهـره مند شــي طالبان

دغه راز هغه يو شمېر نور آثار هم ليکلي دي.

د مرادعلي صاحب له اشعارو څخه څرګنديږي چې د تفسير يسير د لومړي ټوک د ليکلو کار په اتو کلونو او يوولسو مياشتو کې بشپړ شوی؛ يعنې د ۱۲۸۲ هجري کال د کوچني اختر په پنځم پيل او د ۱۲۹۱ هجري کال د روژې په پنځم پای ته رسېدلی دی. د تفسير يسير د دويم ټوک د ليکلو کار د ۱۲۹٦ هجري کال د محرم په پنځمه يعنې د هغه تر

وفات یو کال او دوه میاشتې د مخه شوی او د لومړي ټوک په پرتله یې لږ وخت نیولی دی.

د تفسیر یسیر ژبه خورا خوږه، ساده او روانه ده. ارواښاد عبدالحی حبیبي د تفسیر یسیر په اړه وایي: "تفسیر یسیر په روانه او خوږه ژبه لیکل شوی. په ټولو پښتنو کې مقبول دی، د کندهار نارینه او ښځې له دې تفسیر سره زیاته مینه لري."

عبدالله بختانی خدمتګار وایي: "تفسیر یسیر په پښتني سیمو کې له حده زیات شهرت موندلی دی. دغه وجه ده چې ډېرو خلکو په پښتو کې د تفسیر یسیر په رقم د تفیسرونو د جوړولو کوښښ کړی دی، چاپ هم دي، مګر هغه شهرت او مقبولیت چې د تفسیر یسیر په نصیب شوی، د بل په نصیب نشو. مرادعلي صاحبزاده ړومبنی پښتون دی چې په پښتو ژبه یې د ټول قران تفسیر لیکلی دی."

دا هم د تفسیر یسیر د نثر یوه بېلګه:

"چې هرکله به کفارو په رسول علیه السلام پورې سپکې مسخرې کولې چې دی که واقعي رسول وي، نو دا لوړې اوتندې به یې نه تېرولې او دولت او خزانه به وله راغلې وه چې هم یې په خپله ترې خوړی او هم یې خلقو له ورکولی. د بادشاهانو په شان او یا به ملک ورسره راغلي وو چې د ده تصدیق به یې کاوه. نو دی په دې حرف ډېر تنګ دل شو، ځکه چې ده به کلام د رب ورته لوسته او دوی به نه قبلاوه. بلکې خندل به یې ورپورې... ."

لکه د مخه چې مو یادونه وکړه د مرادعلي صاحب د تفسیر یسیر ژبه خورا خوږه، ساده او روانه ده او له ننني کره لیکنې پښتو سره زیات توپیر نه لري. ده دا سپارښتنه هم کړې وه چې د تفسیر یسیر په لیک او ژبه کې دې ځوک ګوتې نه وهي او هغه دې لکه څنګه چې ده لیکلې هغسې پرېږدي. ښکاري چې داسې هم شوي وي او لیک او ژبه یې هماغسې سوچه پاتې شوي وي.

مرادعلي صاحبزاده د ٧٤ کلونو په عمر د ١٢٩٧ هجري کال د لومړۍ خور په دولسمه وفات شو او په کامه کې د فقیر صاحب د ورثې په مړستون کې د پلار تر څنګ خاورو ته سپارل شوی دی.

د مراد علي صاحب د غوره خدمتونو له امله د کامې په ولسوالۍ کې په ۱۳۴۳ هـ. ش. کال کې یو ښوونځی د هغه په نامه ونومول شو چې بیا وروسته لیسې ته لوړ شو او د مراد علي رح د لیسې په نامه یادیږي.

د متن لنډیز:
افغانان له ویاړه ډک تاریخ لري. په دوی کې د تاریخ په بېلا بېلو پړاوو کې لوړ علمي، ادبي او ټولنیز شخصیتونه تېر شوي دي. ننګرهار د افغانستان په ختیځ کې پروت یو ولایت دی. د علم او ادب د ځانګو حیثیت لري. په خپلې غېږ کې یې زيات شمېر غیرتمن او نومیالي افراد روزلي دي. نن یې یاد د افغانستان د ټولو ولسونو د ویاړ یوه برخه ده. سید جمال الدین افغان له دغه ځایه سر راپورته کړی چې نن یې په نامه ټول اسلامي او آن اروپایي هېوادونه ویاړي او د هغه په ویاړ کې ځان شریک بولي. میا فقیرالله جلال آبادي په همدې خاورې کې خاپوړې کړې دي.
که چېرته خپل تېر تاریخ ته نظر واچوو، نو دا به راته څرګنده شي چې زموږ ګران هېواد په دغه بهیرکې تل د نیواکګرو ځواکونو د زور او زیاتي له امله په علمي، فرهنګي، اقتصادي، سیاسي او ټولنیز ژوند کې له ډول ډول کړاوونو او ستونزو سره لاس او ګرېوان و، خو له نېکه مرغه په بریالیتوب سره له دغو کړاوونو راوتلی او خپل فرهنګ، ژبه او دود یې ساتلی دی. که یو شمېر خلکو توره را ایستلې او غلیمان یې له هېواده شړلي، نورو قلم په لاس کې اخیستی او د پرګنو ذهن یې روښانه کړی دی. مرادعلي صاحبزاده د دغو علمي، فرهنګي او دیني شخصیتونو په منځ کې د بلې ډېوې حیثیت لري. پښتو او پښتون قام ته یې زیات خدمتونه کړي، د نورو ګڼو تالیفاتو ترڅنګ یې د پاك قران تفسیر او ژباړه په پښتو لیکلې ده.
د مراد علي صاحب نوم د خپلو ادبي، فرهنګي او علمي خدمتونو له امله د افغانستان په ادبي او علمي تاریخ کې لوړ ځای لري او تل ځلیږي.



## فعالیتونه

۱ـ زده کوونکي دې یوه غونډه جوړه کړي. د پخوا په څېر دې یو مشر، مرستیال، منشي او ویاند وټاکي. نور پنځه تنه دې د مراد علي صاحب د ژوند، لیکنو، د نثر د ځانګړتیاوو، پښتو شعرونو او همدارنګه د تفسیر یسیر د لیکنې د اړتیا په اړه خبرې وکړي. د غونډې منشي دې د ویناوو عمده برخې ولیکي. د غونډې مشر دې غونډه ارزیابي او د مراد علي صاحب د شخصیت په اړه دې هراړخیزې خبرې وکړي. پاتې زده کوونکي دې فعال اورېدونکي واوسي او د اړتیا پر مهال دې پوښتنې وکړي.

۲ـ د تفسیر یسیر د لیکنې پر اړتیا دې یو زده کوونکی وغږېږي.

۳ـ پر دې خبره دې یو تن زده کوونکی وغږېږي چې ولې هغه مهال تر پښتو په دري او عربي ژبو زیاتې لیکنې کېدې.

٤ـ دوه تنه زده کوونکي دې د ننګرهار د ادبي او فرهنګي مخینې په اړه وغږېږي او د څو تنو نومیالیو سیاسي شخصیتونو، پوهانو، لیکوالو، شاعرانو او دیني عالمانو نومونه دې واخلي.

۵ـ د مرادعلي صاحب تر ټولو مشهور تألیف څه نومیږي او د شهرت لامل یې څه دی؟ یو تن زده کوونکی دې په دې اړه معلومات ورکړي.



## کورنۍ دنده

د مراد علي صاحب د علمي، ادبي او مذهبي شخصیت په اړه یوه مقاله ولیکئ او په بله ورځ یې په ټولګي کې ولولئ.

د مراد علي (رح) د شعر دا لاندې بېلګه ولولئ او خوند ترې واخلئ:

لـه اولـه هېـڅ خیـز نـه و، خـاك اوبه نـه بـاد او نار
نـه دا ځمکې اسـمانونه، نـه لمر سـپوږمۍ لیل ونهار
نـه دا انـس و جن حیـوان نـه نباتات سـیندونه غرونه
مګـر ذات بـې جهـات و، تـل ثابـت پـه یـو قـرار
بیـا د رب اراده وشـوه چـې زه وپېژنـدای شـمه
نـو پیـدا د حضـرت نـور پـه محبـت کـړ کـردګار
نـاګاه نـور شـو پـه جنبـش تـرې مرغلره شـوه پیدا
بیـا د قهـر نظـر وشـو نـو دوه ځایـه کـړه قهـار
لـه یـوې قطعـې یې سـاز کړ هغـه لوی عـرش مجید
بیـا یـې بـاد پسـې پیدا کـړ پـه قدرت پسـې بسـیار
پـه دویمـه قطـره بانـدې بیـا نظـر د قهـر وشـه
لـه هیبتـه یـې اوبـه شـوه او لـه خوفـه تـار پـه تـار
بیـا یـې عـرش پـه اوبـو کیښـود او اوبـه په شـا د باد
بیـا د ځمکـې اسـمانونو عـزم کـړ پـروردګار
بیـا اوبه شـولې پـه موج ځګ پـرې راغی ډېـر او تېز
رب ترې سـازه کړلـه ځمکه او هم غرونه او اشـجار
او پـه دغـه مـوج وهلـو ډېـر لوګـي ورځینـې ولاړه
نـو ترې جـوړ شـو اسـمانونه پکې سـتوري بېشـمار
مراد علي رح (تفسیر یسیر)

# په پښتو ادب کې د مېرمنو برخه




افغاني ټولنه هغسې چې د مېړنيو زانگو ده، د ښځينه اتلو زانگو هم ده. د تاريخ په شاهدۍ افغاني مېرمنې د هر ډگر اتلې دي. دوی په هېواد مينې دي او د خپلواکۍ په ساتلو کې يې له خپلو نارينه ورونو سره اوږه په اوږه ولاړې دي. دوی له علم او پوهې سره ډېره مينه لري. زيات شمېر پښتنې مېرمنې د خپل وخت په دوديزو پوهو او شرعي علومو سمبالې دي. افغاني مېرمنې د ادب د اسمان ستورې هم دي. دوی په خپلو ليکنو او شعرونو کې د خپل وخت اوضاع او احوال غبرگ کړي او تر موږ يې رارسولي دي. دا مېرمنې د پښتنې ټولنې د افتخار شملې دي او پر ځای ده چې افغانان پرې وویاړي.

تاسو څو تنه پښتنې ليکوالې او شاعرانې پېژنئ؟

په افغاني ټولنه کې د ښځو دندې تر نارينه وو درنې دي. هغوی د کور په کارونو سربېره له کوره بهر له نارينه وو سره اوږه پر اوږه د ژوند نور کارونه يوشان ترسره کوي. په کلو بانډو او غرنيزو سيمو کې ښځې تر نارينه وو بيخې زيات کار کوي.

د ادب په پراخ ډګر کې د خپلو احساساتو او باطني جذباتو د ځرګندولو لپاره پښتنې مېرمنو له خپلې وسې ځخه زيات کار کړی دی. د هغوی افکارو او ادبي نوښتونو موږ ته هغه مرغلرې رابښلي دي چې پښتو ژبه پرې هم ژوندۍ او هم وياړمنه ده. په ولسي ادب کې د مېرمنو برخه تر نارينه وو زياته ده.

په ليکلي ادب کې پښتنې مېرمنې له ليک او قلم سره زياتې نژدې پاتې شوې نه دي او يا هم د ټولنيزو محدوديتونو له مخې يې نه دي غوښتلې نوم يې واخيستل شي او ټولنې ته وروپېژندل شي. له دې امله د هغوی يو زيات شمېر، لکه غمې، په ايرو کې پټ پاتې دي. هغوی چې نومونه يې د تاريخ پاڼو تر موږه رارسولي، ډېرې لږې دي. دلته د هغوی له ډلې ځخه يو څو مېرمنې چې په پښتو ادب کې يې نومونه ژوندي پاتې دي، لولو.

## ۱ـ زرغونه کاکړه

زرغونه د ملا دين محمد کاکړ لور وه. د کندهار په پنجوايي کې اوسېده. د وخت دوديز علوم يې له خپل پلار ځخه لوستي وو. زرغونه کاکړه په پښتو ادبياتو کې هغه لومړنۍ شاعره ده چې موږ ته يې نوم او د شعر بېلګه راپاتې ده. نوموړې پښتنې شاعرې د شيخ مصلح الدين سعدي "بوستان" په پښتو نظم اړولی و او نوم يې ورباندې "بوستان د پښتو" ايښی و. مېرمن زرغونې بوستان د پښتو په ۹۰۳ هجري کې پای ته رسولی دی. پر دې سر بېره يې نور اشعار او غزلونه هم ويل او د عالمانو په ډلې کې مشهوره وه. د زرغونې کاکړې په اړه ويل کېږي چې ډېره کمالداره مېرمن وه، ښکلی ليک يې درلود او نورو کتابونو به يې له حسن خط ځخه د خط ډولونه زده کول. د پټې خزانې ليکوال وايي، پلار يې په ۱۱۰۲ هجري کې د زرغونې کاکړې په ليک "بوستان د پښتو" ليدلی و چې خپل اشعار يې په خپل ليک ډېر ښکلی ليکلی وو. د نوموړې نظم بېلګه په لاندې ډول ده:

اوربېدلي مې کيسه ده چې له شاتو هم خوږه ده
د اختر په ورځ سهار بايزيد چې و رويدار
له حمامه راوتلی په کوڅه کې تېرېدلی
ايرې خاورې چا له بامه راچپه کړلې ناپامه
مخ او سر يې سو ککړ په ايرو په خاور خړ
بايزيد په شکر کښنو سو د خپل مخ په پاکېدو سو
چې زه ور يم د بل اور چې په اور کې سم نسکور
له ايرو به څه بد وړمه يا به لړ شکوه کومه
هو، پوهانو ځان ايرې کړ له لوينې يې ځان پرې کړ
څوک چې ځان ته گوري تل خدای ته نسي کړای کتل
لويي تل په گفتار نه ده لو خبره په کار نه ده

تواضع به دې سر لوړ کا
تکبر به دې تل ځوړ کا

# ۲ـ مېرمن رابعه

پټې خزانې د مېرمن رابعې نوم یاد کړی دی. هغې د ۹۲۰ هجري په شاوخوا کې ژوند کاوه. رابعه د بابرشاه هم عصرې وه او په کندهار کې اوسیده. وایي چې نومورې زیات اشعار لرل او دېوان یې هم درلود. د هغې یوه رباعي زموږ گوتو ته رارسېدلې ده:

آدم یې ځمکې وته راستون کا په اور د غم یې سوی لړمون کا
دوزخ یې جوړ کا په مخ د ځمکې نوم یې د هغې دلته بېلتون کا

# ۳ـ مېرمن نېکبخته

مېرمن نېکبخته د شیخ الله داد لور وه. نومورې یوه عارفه او زاهده مېرمن وه. دیني علوم یې لوستي و. مېرمن نېکبختې د "ارشاد الفقراء" په نامه یو کتاب لیکلی دی چې د سرته رسولو نېټه یې ۹۶۹ هجري ښودل شوې ده. د کتاب موضوع پندونه او اخلاقیات دي. لاندې شعر یې له پټې خزانې څخه نقل شوی دی:

په زړه ښاد شې ای مؤمنه
پـه ظـاهـر پـه بـاطـن سپینه

ظاهر زهد په اخـلاص کړه
په زړه ټینګ شه له یقینه

شکر صبر په هر حال کړه
خـود نما مه شه خـود بینه

شپـه او ورځ بـه پـه ژړا یې
کـه خـــبر شې لـــه ســـجینه

سـجـیـن ځـای د خـودنـمـایـه
د بـېـنــمـازو او بـې دیـنـه

لـه هـغـه ځـای امـان راکـړې
یـــا الله الــعــالـمـیـنـه

## ۴ – مېرمن سایره

مېرمن سایره د لغمان د سید زیورشاه لور وه. د زیږېدو نېټه یې ۱۲۹۷ هجري ښودل شوې ده. د وخت دودیز علوم یې له خپل پلار څخه کړي. په پښتو ادبیاتو کې یې د رحمن بابا شعرونه ډېر خوښ وو. مېرمن سایره پر پښتو سربېره پر دري ژبې هم پوهېده. نوموړې پښتنه شاعره په خپلو شعرونو کې د پښتنو د پرمختګ لپاره ډېرې هیلې لري. د مېرمن سایرې شعرونه اخلاقي رنګ هم لري. په خپلو شعرونو کې یې انسان ته له چل او فریب نه د ځان د ژغورلو لارښوونه کړې ده. د مېرمن سایرې شعرونه د انساني زړه سوي او اسلامي وروروِلی یوه په زړه پورې بېلګه ده. لاندې یې د شعر یوه بېلګه ولولئ:

توبه

د ریـا د دیـنـــدارۍ نـه مـې تـوبـه ده
مـسـلـمـان زړه ازارۍ نـه مـې تـوبـه ده

یو نیالګی د مینې ږدې بل یې بیخ کاږي
ددې پـټـې بـیـخ کـنـۍ نـه مـې تـوبـه ده

چې تسبیح یې وي په لاس بغض یې په زړه کې
خدایه دا رنګې شیخی نه مې توبه ده
چې د بل چا بدنامی باندې خوښیږي
د کچه مسلمانۍ نه مې توبه ده
په خوله ویاسي توبې په خوله تمبې وي
الله، داسې رهزنی نه مې توبه ده
سایره د ننګیالیو زلمو خور ده
د بې ننګو ورورولی نه مې توبه ده

## ۵ - حاذقه هروي

د حاذقې نوم کشوره دی. نوموړې د محمد عثمان دراني لور او د هرات اوسېدونکې وه. پر ۱۳۴۰ هـ. ق. کال د محرم د میاشتې په ۲۵ په هرات کې زیږېدلې ده.د وخت زده‌کړې یې په خپل کور کې کړې دي. د عربی، فقهې، احادیثو او نور دیني کتابونه یې لوستي دي. مېرمن حاذقې په پښتو او دري دواړو کې شعرونه ویلي دي او نثر یې لیکلی دی. د اشعارو او نثر مجموعه یې د "آثار حاذقه هروي" په نامه یادیږي. حاذقه په پښتو ژبه او ولس مینه وه. د هغې دواړو پرمختګ یې د زړه له تله غوښت.

د حاذقې د نثر بېلګه:

"اما ښکاره خبره ده چې ژبه د یوه محیط په اجتماعي شئوناتو کې ژوره اغېزه لري. د هرې ژبې لهجه مخصوص اثرات لري چې د هغې د خبرو کوونکو ملي خصایص ځینې پوره څرګندیږي. نو ځکه د ځوانو لیکوالوله محترمې ډلې څخه هیله کېږي چې د خپلې ملي ژبې په ژوندی کولو کې تر خپل وس پورې زیار وکاږي او په دې خوږه ژبه خپل احساسات څرګند او نشر کړي. د دې لپاره چې خپل ملي شهامت په ځای او د ټولنې اخلاق د خپلو ملي عواطفو په قوت اصلاح کاندې، قومي او ولسي یووالی دې په صحیح ډول سره ژوندی کړي."

دا يې هم د شعر يوه بېلګه:

فـــــکــر وکـړه ای ملتـه د پښـتون
ترقـي لــه هـرې خـوا ده روز افـزون
هلـه پاخـه نـن زحمـت واخلـه پـه ځـان
زيـار وکاږه پـه صنعـت او پـه عرفـان
کـه هـــــرځـای لـرې دعـوا د مليـت
خپـل ځــان وګڼـه خـادم د مملکـت
ولـې نـه بـه کـړو بيـا فــــخرمسـرت
شـــــــو پيـدا د ملـي ژبـې اهميـت
زده کـول هـم د دې ژبـې لـوی کـمـال دی
پريښـودل يـې هـر پښـتون لـره ډېـر عـار دی
پـه وطـن کـې د ملـي ژبـې نوبـت دی
نـن جاري په هـره خوا کـې عـــــلميت دی
توريالـی زمـری پښـتونه ځـان بيدارکـړه
پـه عـــــلومـو او فنونـو دې تلـوار کـړه
دا مـوږ ټـول د دې وطـن خدمتـګاران يـو
نــــر او ښـځې يـو تـر بـل فـداکاران يـو
راځـئ ټـول چـې پـه ملـي ژبـه وينـا کـړو
پـه اصلـي صورت ښـکاره ځـان په دنيـا کړو
هـر پښـتون د ملـي ژبـې طرفـدار دی
که اديـب دی که کاسـب کـه زمــــيندار دی
حاذقـه شـعرونه وايـي خـواري کـانـدي
پـه ليکلـو د پښـتو کـې بـه شـي ورانـدې

## ۶ - مېرمن حميده

مېرمن حميده د سيدحضرت شاه لور وه. پر ۱۲۹۷ هـ. ش. کال په ننګرهار کې

زيږېدلې ده. مېرمن حميدې نه يوازې په شعر ويلو کې روانه طبعه درلوده، بلکې په نثر کې يې هم روان ليکل کول. مېرمن حميدې له وړوکتوب څخه له شعر ويلو سره مينه درلوده. د مېرمن حميدې اشعار ډېر اسان او خواږه دي. مېرمن حميده پر ۱۳۳۹ هـ. ش. کال په حق رسېدلې ده.

دلته يې د نثر يوه بېلګه ولولئ:

## د يوې پښتنې پېغلې ارمان

پېغله وايي: مورکۍ! زه چې څان سره فکر وکړم، نو وايم ځار شم د وطن له تورو خاورو او تورو، تورو غرونو، تر هغو سپينو ماڼيو او لوړو، لوړو بنګلو نه چې واک يې د بل وي.

قربان شم د دې پاکې او ازادې هوا نه او سر مې لوګی شه د وطن د آزادۍ په لار کې.

مورې! ها بله ورځ تا راته چې د ميوند د شهيدانو نکل کاوه، څومره ارمان مې کړی دی چې کاشکې زه هم هلته وای چې دغو د ازادۍ شهيدانو ته مې په خپل سر د اوبو منګي وړی وای؛ ډوډۍ مې ورسولې وای؛ کارتوس او ټوپک مې وروړی وای او ورسره اوږه په اوږه جنګېدلې وای!"

دا هم د مېرمن حمېدې د شعر نمونه:

زما کم نصيبه

ماويل زړه به مې خالي شي لږ له غمه
دواړه سترګې به مې وچې شي له نمه
د ښادمنو په ټولګي کې به شم ياده
زمانه به راسره ځي په لار سمه
هميشه به مې خندا وي غم به نه وي
نه به ځان سره ژړيږم لکه شمعه
په مراد به مې د زړه هره ارزو وي
بيګانه به يم د دنيا له لويه غمه

نـور د صبـر پـه نغـمـه بـه زړه لـلـو کـړم
زمـانـې نـه مـې د سـود نـشـي ځـه تمه
شپـه د هـجـر شـوه اوږده د خـدای لپاره
ښکلی مـخ دې راښـکـاره کـړه صبح دمه
پـه نسیم د اسوېـلـو بـه دې راویـښ کړم
ای زمـا پـه خـوب ویـده نـصیبـه کمه

## ۷ - سیده حیات بیگم نسیم

سیده حیات بیگم نسیم د الحاج میا الطاف گل کاکاخېل لور ده، په ۱۹۳۸ م کال کې په چترال کې زېږېدلې ده. دواړو نیکونو یې د خپل وخت د علم او معرفت لوړ مقام درلود. سیدې خپلې دیني زده کړې له خپلې مور او نورې زده کړې له خپل پلار څخه وکړې او د پښتو یوه تکړه شاعره شوه. د سیدې اشعار ډېر پېچلي نه دي. شعر یې خوندور دی.لوړ خیالات، نرم احساسات او باریک تشبیهات په کې لیدل کېږي. د سیدې په اشعارو کې د پند او نصیحت مرغلرې موندل کېږي. هغې د خپلې زمانې ټولې نیمگړتیاوې په خپلو شعرونو کې غبرگې کړې او هڅه یې کړې چې د پښتنو پام خپلو کمزوریو ته واړوي. د وینا ټولگه یې "د نسیم وږمې" تر سرلیك لاندې په ۱۹۸۶ کال کې خپره شوې ده. دا یې هم د کلام نمونه:

گـرځـم زه د یـار پـه نـم تـازه تـازه
لـکـه گـل وي پـه شـبـنـم تـازه تـازه
زخمي زړه مـړاوی وجـود مې شي دلبره
د سـرو شـونـډو پـه مـلـهـم تـازه تـازه

* * *

کاش چې زړه مې د آینې غوندې صفا شوای
پس په زړه کې مې یو مینه د الله شوای
زړه مې مـوړ شـوای د دنیا لـه کـاروبـاره
راسـره واړه فـکـرونـه د عقبی شـوای

د متن لنډیز:

پښتنې مېرمنې  په فولکلوري ادب کې زیاته ونډه لري. د پښتو ادب تر ټولو خوږ او په زړه پورې فولکلور ټپه، لنډۍ، سانده، ستاینه او نور دي چې دا بیا د پښتنو مېرمنو شتمني ګڼل کېږي. پښتنې مېرمنې زیاتره په فی البدیهه شاعرۍ کې ډېرې وتلې دي. په هرکور، کلي او کېږدۍ کې یې ښېلګې موجودې دي. د ادب په دې پراخه ډګر کې ځینې داسې نومونه شته چې د خپلو ویناوو او لیکنو له مخې تر موږه رارسېدلي دي. د دې پښتنېومېرمنو ډېره لږه شمېره تر لاسه شوې او د  پښتو ادب په تاریخ کې یې ځلند مقام خپل کړی دی. چې په یاد یې راوروسته نسل وياړي.

پښتنې مېرمنې د خپلو ورونو په څېر د ژوند په هر ډګر کې ډېرې بریالۍ دي. هغوی مخې ته د ژوند پراته ټول کړاوونه په ډېر زغم او تدبیر ګالي. خپل اولادونه په ډېره مینه روزي او لويوي. د کور دننه او له کوره بهر کارونه سرته رسوي، د خپل ځان، اولادونو او مېړه لپاره له خوښۍ او خوشحالۍ نه ډک کورنی چاپېریال رامنځ ته کوي. لوست کوي او پوهه لاسته راوړي. لوست ورکوي او نور پوهوي. د خپلوناروغو، خویندو او ورونو درملنه کوي. په پوځي او نظامي چارو کې برخه اخلي. سیاسي مشرۍ ته ځانونه چمتوکوي او  ټولو هغو دندو ته لاس اچوي چې د هغوی ورونه یې سرته رسوي، خو له دې سره سره بیا هم د یو شمېر قومي او قبیلوي او سنتي دودونو په لومو کې ښکېلې دي. په یو شمېر ښارونو او زیاترو لېرې پرتو سیمو، کلو او بانډو کې له تبعیض او تعصب سره مخامخ  دي. د زړو او نامنلو دودونو ښکار دي. کله کله د ښاروېو په څېر چلند ورسره کېږي او پېر او پلور ته وړاندې کېږي. دا ټول هغه څه دي چې روان مهال یې د منلو زغم نه لري. باید د هغې په وړاندې غبرګون او مقاومت وښودل شي. البته دا غبرګون او مقاومت یوازې د نجونو او مېرمنو مسؤولیت نه دی. نارینه تر ښځو د مخه دنده لري چې لومړی هغوی ته په ټولنه کې د ځان په څېر په حق قایل شي؛ د یو بشري موجود په توګه یې ومني او وروسته په هغو سیمو او ځایونو کې چې ښځې د ناسم دود او دستور ښکار شوي او ښکار کېږي، مرسته وکړي او له دې رنځ او کړاو څخه یې وژغوري.



## فعالیتونه

۱ـ لس تنه زده کوونکي دې په وار د ټولګي مخې ته راشي او په افغانستان کې دې د ښځو په وړاندې پرتې ستونزې په ګوته کړي. هڅه دې وکړي چې یو د بل خبرې تکرار نه کړي. پاتې زده کوونکي دې هغه ولیکي او توحید دې کړي.

۲ـ زده کوونکي دې په خپل ټولګي کې یوه غونډه تمثیل کړي. پورته موندل شوې ستونزې دې وګوري او د هغې د حل د لارو چارو په اړه دې خبرې وکړي. په پای کې دې خپلې موندنې د یو وړاندیز په توګه ولیکي او له ځانونو سره دې یادداشت کړي.

۳ـ پنځه تنه زده کوونکي دې د ټولګي په وړاندې په ټولنه کې د ښځو په دریځ او د هغوی په ارزښت خبرې وکړي. نور زده کوونکي دې په خبرو اتروکې برخه واخلي.

٤ـ زده کوونکي دې د پنځو دقیقو لپاره فکر وکړي چې ځوانان او نجونې څنګه د هېواد د راتلونکي لپاره کار کولای شي. وروسته دې څو تنه په خپله خوښه خپلې نظریې د نورو په وړاندې ووایي، خبرې اترې دې پرې وکړي او غوره وړاندیزونه دې راټول او ولیکي.

۵ـ زده کوونکي دې په پښتو ادبیاتو کې د مېرمنو د ونډې او د هغې د ارزښت په اړه خبرې وکړي.



## کورنۍ دنده

په خپل ښار، کلي او چاپېریال کې د ښځواو نجونو په وړاندې د ناروا چلندونو د عملي بېلګو په اړه یو مخ لیکنه وکړئ.

> یوازې د ښځو شتون دې ستونزمن ژوند ته قدر او منزلت ورکړی، که نه، نو ژوند به د زغم وړ نه و.
>
> ((اناتول فرانس))

# یوهان ولفگانگ فون گویته
# (۱۸۳۲ - ۱۷۴۹)



په تېرو ټولګيو کې مو پر پوهانو، ملي مشرانو، ليکوالو او شاعرانو سربېره يو شمېر نړيوالې ادبي څېرې وپېژندلې. دلته د ګويته په نامه يو الماني شاعر درپېژنو. د دې شاعر او د هغه د ويناوو د بېلګو له لارې به لا نور هم د نړيوالو ادبياتو په اړه معلومات لاس ته راوړئ. يو لويديځ پوه ويلي دي: "موندل کوم مهم شی نه دی، مهمه داده چې بايد هر نوی پيدا شوی شی زموږ په ذهن کې يو څه شی زيات کړي."موږ بايد له نوي موندل شوي شي سره اړيکې ټينګې کړو او له دې لارې خپله معنوي پانګه زياته کړو. د بېلابېلو ليکوالو ليکنې او د هغوی آثار لوستل د لوستونکي موجوده پوهه پراخه او بډايوي.

د نړيوالو ليکوالو او شاعرانو د آثارو لوستل څه ګټه لري؟

يوهان ولفگانگ فون گويته "Yohann Wolfgang von Goethe" د جرمني د فرانکفورت په ښار کې په يوې بډايې کورنۍ کې پر ۱۷٤۹ م کال زېږېدلی دی. پلار يې حقوقپوه او مدافع وکيل و؛ مور يې هم د جرمني د سهيل د حقوقپوهانو له کورنۍ څخه وه. گويته په يو متمدن او با فرهنگه چاپېريال کې لوی شو او تر منظمې ښوونې او روزنې لاندې ونيول شو. په پنځلس کلنۍ کې د حقوقو د زده کړې لپاره د جرمني يو بل ښار، لايپزيک ته لاړ. هلته د زده کړې تر څنگ پر يوې نجلۍ مين شو. له هغې سره د تودې مينې له امله يې په شعر ويلو پيل وکړ. وروسته په ۱۷٦۷ م کال کې د گويته د شعرونو لومړی ديوان چاپ شو. دا په عشقي او تغزلي شعرونو کې د گويته لومړنۍ تجربه وه. په لايپزيک کې له دريو کلونو تېرولو وروسته بېرته فرانکفورت ته لاړ. په ۱۷٦۹ کال کې يې د "جرم د شريکانو" په نامه يوه منظومه کميډي او د "لايپزيک د نغمو ديوان" کتابونه خپاره کړل چې د لايپزيک يادونه يې په کې غبرگه کړې وه. بيا په ۱۷۷۰ م کال کې د حقوقو د زده کړې د دوام لپاره شتراسبورگ ته لاړ. په شتراسبورگ کې ژوند د گويته په فکر او هنر لويه اغېزه وکړه. هلته يې له يو شمېر شاعرانو او هنرمندانو سره پېژندگلوي پيدا شوه. په دې ځای کې د ده پر ژوند بل اغېز د "فريدريکې بريون" په نامه له يوې نجلۍ سره د هغه آشنا کېدل و. دې آشنايۍ د گويته پر ژوند ډېره اغېزه وکړه. د هغې لپاره يې شعرونه وويل چې وروسته يې د "شعر او حقيقت" په نامه يو ديوان کې چاپ کړ. ويل کېږي چې دا شعرونه د جرمني د نوي عصر د ادبياتو په تاريخ کې لومړني شعرونه بلل کېږي. دا ديوان څلور برخې لري او شخصي ژوند پکې نغښتی دی. په شتراسبورگ کې د گويته تحصيلات په ۱۷۷۱م. کال کې بشپړ شول او بې له دې چې له فريدرېکې سره د وروستي ځل لپاره ديدن وکړي، فرانکفورت ته ستون شو. هلته يې په نوي ژوند لاس پورې کړ. د مدافع وکيل له دندې سر بېره يې ارزښتمن آثار وليکل چې د ده د لويۍ او نبوغ ځلا يې لرله.

گويته د روسو په څېر له طبيعت سره مينه درلوده. هغه به د الزاس دښتو ته تلو او هلته به يې تر شين آسمان لاندې ډېر وخت تېرولو. له طبيعت سره مينې او عاطفې د گويته په آثارو

کې غبرګون وموند. دا غبرګون په ۱۷۷۳م. کال کې څرګند شو. د دې دورې په ننداړو کې د "محمد نغمې" یادولی شو چې له ختیځ څخه د شاعر له پېژندګلوۍ وروسته ولیکل شوې. ګویته د پاک قران له لوستلو وروسته د یوې ننداړې د لیکلو په فکر کې شو چې په هغې کې له یوې خوا د حضرت پیغمبر ﷺ د عظمت عناصر او له بلې خوا د هغه تاریخي وضعه او رسالت څېړي.

ګویته د شعرونو په پورته دیوانونو سربېره د "المان معماري"، "د برلیسینګن خدایان"، "د ځوان ورتر کړاوونه"، "پرومیتیوس"، "ایفیژیني"، "تاریویس"، "تورکواتو تاسو" او "اختیاري وصلت" او زیات شمېر نور آثار لیکلي چې ناولونه، ډرامې، د شعر ټولګې او علمي آثار پکې شامل دي.

ګویته په جرمني کې هماغسې دریځ درلود، لکه دانتې چې په ایټالیې او شکسپیر په انګلستان کې درلود. ګویته نژدې ۶۰ کاله پر هرځای خپل سیوری غوړولای و. ډېرو لږو کسانو به د ګویته په څېر د نړۍ په ادبیاتو کې ستر اغېز درلودلای وي. د هغه ارزښت د هغه په نبوغ او د فکر په پراخوالي کې و. ګویته نه یوازې د خپلې زمانې د ادبیاتو او تمدن بشپړ نابغه و، بلکې هغه خپله یو دایرة المعارف و چې د یوې بشپړې دورې تمدن اوفرهنګ پکې پروت و.

د متن لنډیز:

یوهان ولفګانګ فون ګویته په جرمني کې زېږېدلی دی. پلار یې حقوقپوه او مدافع وکیل و. ګویته په یو متمدن او با فرهنګه چاپېریال کې لوی شو او تر منظمې ښوونې او روزنې لاندې ونیول شو. په پنځلس کلنۍ کې یې په شعر ویلو پیل وکړ. په ۱۷۶۷م. کال کې یې د شعرونو لومړی دیوان چاپ شو. په ۱۷۶۹م. کال کې یې د "جرم د شریکانو" په نامه یوه منظومه کمیډي او د "لایپزیک د نغمو دیوان" کتابونه خپاره کړل. په ۱۷۷۰م. کال کې شتراسبورګ ته لاړ. د دغه ځای ژوند د ګویته په فکر او هنر لویه اغېزه وکړه. هلته یې له یو شمېر شاعرانو او هنرمندانو

سره پېژندګلوي پیدا شوه. دلته یې د "شعر او حقیقت" په نامه یو دېوان کې چاپ کړ. ویل کېږي چې دا شعرونه د جرمني د نوي عصر د ادبیاتو په تاریخ کې لومړني شعرونه بلل کېږي. دا دېوان څلور برخې لري او شخصي ژوند پکې نغښتی دی. ګویته د روسو په څېر له طبیعت سره مینه درلوده. هغه به د الزاس دښتو ته تلو او هلته به یې تر شین اسمان لاندې ډېر وخت تېرولو. له طبیعت سره مینې او عاطفې د ګویته په اثارو کې غبرګون وموند. دا غبرګون په ۱۷۷۳م. کال کې څرګند شو. د دې دورې په ننداروکې د "محمد نغمې" یادولی شو چې له ختیځ څخه د شاعر له پېژندګلو وروسته ولیکل شوې. ګویته د پاک قران له لوستلو وروسته یوه ننداره ولیکله چې پکې له یوې خوا د حضرت پیغمبرﷺ د عظمت عناصر او له بلې خوا د هغه تاریخي وضعه او رسالت څېړي. ګویته د شعرونو په پورته دیوانونو سربېره د "المان معماري"،" د برلیسینګن خدایان"، "د ځوان ورتر کړاوونه"، "پرومیتیوس"، "ایفیژیني په تاوریس کې"، "تورکواتو تارسو" او "اختیاري وصلت" او شاوخوا ۱٤۳ شمېر کتابونه، شعرونه، ننداري، ناولونه او علمي آثار لیکلي دي. ګویته نژدې ٦۰ کاله د ادب په میدان کې نیلی ځغلولی و.

د ګویته د آثارو د یوې بېلګې په توګه د هغه «د ځوان ولتر کړاوونه» یوه برخه دلته لولو:

## د ځوان ورتر کړاوونه

((د ځوان ورتر کړاوونه ــ ۱۷۷٤م)) د ګویته یو رومان دی چې په هغې کې یې د ژوند د خپلو کتنو، پېښو او د هغه وخت د ژوند له حالتونو څخه خبرې اترې کړې دي. ځوان ورتر ژور احساسات او لوړې غوښتنې لري. روح یې د طبیعت او هنر د اغېز د منلو لپاره ښه چمتو دی، خو باطن یې د ژوند له حقیقتونو سره سمون نه لري. په ټولنه کې له خلکو سره په راشه درشه (معاشرت) کې له خنډونو او محدودیتونو سره مخامخ کېږي. په پای کې

نهیلي او مینه یې ناکامیږي. داکار هغه ځوروي او په پای کې یې ځان وژنې ته هڅوي.

زموږ دا لیکنه د هغه د رومان وروستۍ برخه ده چې د لیکونو خپرونکی یې نقلوي. په دې برخې کې له خپلې معشوقې، ((لوته)) سره د هغه وروستنۍ لیدنه بیان شوې ده. لوته وروسته د البرت په نامه له یو بل شخص سره واده کړی. د ((ورتر)) په نامه د گویته دې اثر له خپرېدا وروسته ډېر بریالیتوب تر لاسه کړ.

[هغه ورځ چې ورتر دوست ته خپل وروستی لیک ولیکه، یکشنبه وه او عیسوي اختر ته لا څو ورځې پاتې وې. ماښام ورتر د ((لوته)) کور ته لاړ. لوته یې ولیده چې خپلو کوچنیو ورونو او خویندو ته د نوي کال په مناسبت اخیستل شوي سوغاتونه تنظیموي. ورتر د هغه خوشحالۍ په اړه په فکر کې ډوب و چې کوچنیان به یې د دې سوغاتونو په لیدلو تر لاسه کړي. هغه سوچ کاوه، کله چې دروازه بېرته شي او کوچنیان دا سوغاتونه ووینې او یا په څراغونو د سینگار شوې ونې ننداره وکړي، له خوشحالۍ نه به ټوپونه ووهي. په داسې حال کې چې لوتې خپله دننۍ اندېښنه په یوې موسکا پټوله، ویې ویل: ((که ته هم ومنې چې ښه واوسې، نو سوغات به تر لاسه کړې. یوه ښکلې ډېوه او ورسره مل نور شیان.)) ورتر په لوړ غږ وویل: ((ښه توب یعنې څه؟ باید څنگه واوسم او څنگه کولای شم واوسم، گرانې لوتې؟))

لوته وویل: ((د پنجشنبې په ماښام عیسوي اختر (کریسمس) دی. کوچنیان راځي او کېدای شي پلار مې هم راشي. هغوی ټول به سوغاتونه تر لاسه کړي. تاسو هم هغه ورځ راشئ، خو دوخته مه راځئ.))

ورتر ډېره ولگوله او لوتې دوام ورکړ: ((زه له تاڅخه هیله کوم چې یوه پلا به داسې وي. بیا هم له تاسو څخه د کرارۍ هیله کوم. وضع به همداسې پاتې نشي.)) ورتر له هغې څخه سترگې واړولې، په داسې حال کې چې د کوټې له یو سر څخه بل سر ته تله، تر ژبې لاندې غړومبېده او ویل یې: ((وضع به همداسې پاتې نشي.))

کله چې لوتې دا حالت احساس کړ، د گڼو پوښتنو له لارې یې وغوښتل د هغه فکر بلې

خوا ته واړوي، خو ګټه یې ونه کړه.

ورتر په لوړ غږ وویل: ((نه، لوتې، بیا به هېڅکله تا ونه ګورم!)) لوتې وویل: ((ولې، ولې؟ باید ومې ګورې، ته مجبور یې بیا مې هم وګورې! خو د اعتدال له مخې. اوه، ته ولې داسې چال چلن کوې چې له هر شي کرېږې او هغه ځانته د غره په څېر غټوې؟)) لوتې د ورتر لاس په خپل لاس کې ونیو او ویې ویل: ((هیله کوم، میانه رو واوسې او خپل تعادل وساتې. د خپل ذهن، پوهې، ذکاوت او هغو ټولو شیانو په اړه سوچ وکړه چې تا خوشحالوي. دا غم له ځانه لېرې کړه او یو نارینه واوسه!))

ورتر په داسې حال کې چې خپل غاښونه یې چیچل، لوتې ته خړ، خړ وکتل. لوتې په داسې حال کې چې د ورتر لاس یې په لاس کې ټینګ نیولی، زیاته کړه: ((ورتره، مازې یوه شېبه په کراره فکر وکړه. ته نه پوهېږې چې په دې کار ځان له پښو غورځوې او ځان پخپله له خاورو سره خاورې کوې! ولې ما؟ ورتره، ځوک چې د بل چا وي؟ ولې؟ ډارېږم، ډارېږم. دا ناشونې هیله چې زه دې د بل چا واوسم او تاسو زما خاوند شئ؟ دا ناشونې ده! کېدای شي تا ته جالبه وي.))

ورتر په داسې حال کې چې هغې ته یې په نهیلۍ خړې خړې کتل، د هغې له لاس څخه یې خپل لاس کش کړ او چیغې یې کړې: ((عاقلانه، ډېره عاقلانه. کېدای شي البرت دا خبرې کړې وي... .))

لوتې ورزیاته کړه: ((دا هرڅوک درک کولای شي. ایا په ټوله نړۍ کې به داسې یوه پېغله ونه موندل شي چې خپل د زړه ټولې هیلې یې پوره کړې وي؟ ته د ځان په اړه سوچ وکړه.... زما او ستا ترمنځ د محدودیت د پیدا کېدو له امله له اوږدې مودې راهیسې ډارېدم. د دې کار لامل هم پخپله ته یې. ته یو ځلې ازمېښت وکړه. که چېرته لاړ شې، کېدای شي فکر دې ارام شي، هڅه وکړه، هرو مرو د خپلې ارزښتمنې مینې موضوع موندلای شې. بیا بېرته راشه او پرېږده چې په ګډه له یوې حقیقي دوستۍ څخه په ګډه خوند واخلو!))

## فعالیتونه

۱ـ دوه تنه زده کوونکي دې د پورته متن په مرسته د گویته په اړه ټولگیوالو ته معلومات وړاندې کړي.

۲ـ یو تن زده کوونکی دې ووایي چې د ختیځ اشنایی پر گویته څه اغېز وکړ او په پایله کې یې څه وشول؟

۳ـ د گویته د شعرونو لومړی دېوان چېرته، کله او په څه نامه چاپ شو؟ یو تن زده کوونکی دې نورو ته معلومات ورکړي.

٤ـ درې تنه زده کوونکي دې د ټولگي مخې ته راشي او ودې وایي چې پر نړیوالو ادبیاتو پوهېدل موږ ته څه گټه لري؟

۵ـ دوه تنه زده کوونکي دې نورو ته ووایي چې کومې نړیوالې ادبي څېرې پېژني. نومونه دې یې ووایي او د یو شمېر آثارو نومونه دې واخلي.

## کورنۍ دنده

د گویته د ژوند، اشعارو او لیکنو په اړه یوه معلوماتي مقاله ولیکئ.

د بشر بدمرغي په دې کې ده چې د روح او روان پر ځای پر تن او بدن ډېره پاملرنه کېږي.

((گویته))

لاندې شعر ولولئ او خوند ترې واخلئ:

## د وچکالۍ ګلان

دا سـوی سـتي وطن، پرېږدئ چې لږ وخاندي
دغـه غیرتـي وطن، پرېـږدئ چې لـږ وخاندي
دا د مرګ او وینو سین، دا د زړه چاودون محل
دا زخمي زخمي وطن، پرېږدئ چې لږ وخاندي
مـه وژنئ د شـپو په تېغ، روڼ د مسـتقبل څراغ
سـتړی فریادي وطن، پرېږدئ چې لږ وخاندي
اوښـکې د پېغلوټـو مې، چیغـې د مظلوم یتیم
زوی د مورنـي وطن، پرېـږدئ چې لږ وخاندي
غاړه کې پرته شمله، پرې چې هسکه هسکه شي
دا زموږ ننګي وطـن، پرېږدئ چې لږ وخاندي
دا د وچکالـۍ ګلان، نـور نـو اوبیـدل غواړي
تږی د سـپرلي وطـن پرېږدئ چې لـږ وخاندي
اسحٰق ننګیال



# د بشري حقونو تاریخچه






بشر یا انسان له خپل موجودیت سره سم یو لړ حقونه لري. البته ځینې دا حقونه د بشر له خلقت راهیسې تل موجود وو او طبیعي حقونه بلل کېږي. خو د ژوند په دوران کې بشر نور حقونه هم تر لاسه کړل. کله که هم په یو ډول نه یو ډول انسان له یو یا زیاتو حقونو څخه بې برخې شي، نو د هغه بشري یا انساني دریځ ته زیان رسیږي. نن سبا ټولې پرمختللې ټولنې او هېوادونه زیار باسي چې انسان خپل حقونه ولري او په هېڅ ډول ورڅخه بې برخې نشي. کېدای شي په ځینو حالتونو، لکه د جګړې یا کورني تاوتریخوالي او یا د یو جرم د سرته رسولو په حالت کې، یو یا له یو څخه زیات حقونه وځنډول شي، خو په هېڅ توګه ترې انسان د تل لپاره نشي بې برخې کېدای.

بشري حقونه یو بنسټ لري او هغه انسانیت دی. له دې امله په ټوله نړۍ کې یوشان دي.
د بشري حقونواوسنی اصطلاح او مفهوم د لویدیځي نړۍ زیږنده او نسبتا اوږده سیاسي او تاریخي مخینه لري.

د بشري حقونو زړی او هسته د اسلام د سپېڅلي دین له راتګ سره سم وکرل شوه. هغه انساني حقونه چې په اسلام کې بشر ته ورکړل شوي، په بل کوم سازمان او ټولنه کې ځای نه لري. په دې توګه اسلام د بشري حقونو تر ټولو لومړنۍ سرچینه ده.

بشري حقونه په اوسني مفهوم په اووه لسمې میلادي پیړۍ کې د اروپا د سیاسي نظریاتو بهیر ته لاره وکړه. په دې لړ کې لومړنی موجود سند د جان لاک "د حکومت کولو دویم تړون" نومی اثر دی چې په ۱۶۸۸م. کال کې د برتانیې د لوی انقلاب په پیل کې چاپ شو.

د جان لاک په نظر حکومت د حاکمانو او رعیت تر منځ د یو ټولنیز تړون پر بنسټ ولاړ دی. رعیت تر هغې د اصولو او قوانینو په منلو مکلف دی چې حکومت د خلکو د بشري حقونو ساتنه کوي. حکومت تر هغه قانوني ګڼل کېږي چې په منظمه توګه د خلکو د بشري حقونو ساتنه کوي.

په نړیوال ډګر کې د بشري حقونو د تثبیت او ساتنې په اړوند له جان لاک وروسته موجود مهم سند په اتلسمې پېړۍ کې د فرانسې د انقلاب د بشري حقونو اعلامیه ده. دا اعلامیه د ۱۷۹۸م. کال د اګست په ۲۶ نېټه تصویب شوه. دا اعلامیه هغه مهال تصویب شوه چې د فرانسې د ملت استازي په یوې لویې ملي جرګې یا غونډه کې سره راټول شول. په غونډه کې هغوی د دې اړتیا احساس کړه چې د بشر طبیعي اوټولنیزوحقونو ته نه پاملرنه یا هغوی ته په درنه سترګه نه کتل د ولس ژوند په ناوړه توګه اغېزمن او حکومتونه فاسدوي. د غونډې برخه والو وپتېیله چې د یوې رسمي اعلامیې په ترڅ کې د بشر سپېڅلي او تلپاتې حقونه وړاندې او د ټولنیز ژوند بنسټ وګرځوي. دې لومړنۍ اعلامیې اووه لس مادې درلودې. په لومړۍ مادې کې د انسان د ازادۍ او برابرۍ مسئله، په دویمې کې د سیاسي ټولنې موخه او د بشري تلپاتې حقونو ساتنه وه. په دریمې مادې کې د حاکمیت مسئله وه چې په هر ملت کې شته او ملت د خپل سیاسي او ټولنیز حاکمیت تمثیل کوي. همدا راز دا موضوعګانې پکې شاملې وې:

ټولنې ته د زیانمن عمل مخنیوی، د قانون پېژندنه، بند او حبس، د جزا ټاکل او پلي کول، د فرد اصلي حالت، د سیاسي عقېدې د ازادۍ تضمین، د بشري حقونو تضمین، د مالیاتو ورکړه، د حساب اخیستل، د بشري ملکیت حق.

د نوموړې اعلامیې په متن کې وخت په وخت تعدیل راغلی او مواد او احکام یې د بشر په ګټه زیات توضیح او څرګند شوي دي.

د فرانسې له انقلاب څخه وروسته پوهانو د بشري حقونو د رښتینې کېدو هڅه کوله او د هغو د سرته رسولو لپاره یې ځانګړې موسسې او ټولنې جوړې کړې. د فرانسې بشرپالو د بشري حقونو د پلویانو یوه ډله جوړه کړه. دوی په دې خبره سلا شول چې په خپله ډله کې یوازې هغه اشخاص ومني چې د فکر سطحه یې لوړه او د نظر افق یې پراخه وي. د ۱۸۹٤م. کال د جون په څلورمه یې د موسسانو یو پلاوی جوړ کړ او هغوی بیا د ټولنې د کړنلارې اساسنامه تصویب کړه.

د بشري حقونو دې ډلې د ټولنې په سیاسي ژوند کې خپل نقش او اغېز لاپسې زور کړ. په ۱۹۱۹م. کال کې د موسسانو ټولنې پراختیا وموندله او په ۱۹۳۳م. کال کې یې په ملي او نړیواله کچه زیات پلویان پیدا کړل. که کوم سیاسي ناتار به د بشر آزادي او حقونه له خطر سره مخامخ کړل، دې ټولنې به سر راپورته او پر سرغړوونکي به یې د پړې او ملامتۍ غږ وکړ.

د بشر حقونو د تثبیت او تضمین لپاره د نړیوالو هلو ځلو زرین پړاو د دویمې نړیوالې جګړې له پای ته رسیدو وروسته پیل کېږي. د ملګرو ملتونو تر جوړېدا وروسته د بشري حقونو په ډګر کې د کاري پیاوړتیا لپاره په ۱۹٤٦م. کال د بشر د حقونو کمیسیون رامنځ ته شو. کمیسیون دې ته وګومارل شو، د بشري حقونو یو داسې فهرست چمتو او جوړ کړي چې د نړۍ د ټولو هېوادونو لپاره د منلو وړ وي. دې کمیسیون په پیل کې ٤۳ تنه غړي درلودل، خو په ۱۹۹٤ م کال کې یې د غړو شمېر ۵۳ تنو ته ورسېد.

په ۱۹٤۸م. کال کې د بشري حقونو یو فهرست د یوې اعلامیې په بڼه جوړ او د همدغه کال د دسمبر په لسمه نېټه د بشري حقونو د نړیوالې اعلامیې په نامه تصویب شو. دا اعلامیه

دېرش مادې لري چې د بشري حقونو بېلا بېل اړخونه پکې په ژوره توګه نغښتي او غبرګ شوي دي. په ۱۹۵۰م. کال کې د ملګرو ملتونو عمومي غونډې (اسامبلې) پرېکړه وکړه، د دسمبر لسمه نېټه چې د بشري حقونو د تصويب ورځ ده، د بشر د حقونو د نړيوالې ورځې په نامه ونومول شي او په ملي او نړيواله کچه ولمانځل شي. له هغې راوروسته هرکال دا ورځ د غونډو او کنفرانسونو په جوړولو په ملي او نړيواله کچه لمانځل کېږي.

د ۱۹۵۹م. کال د نومبر په شلمه د ماشوم د حقونو نړيواله اعلاميه تصويب شوه. دا اعلاميه په نهو اصلونو کې د ماشوم په حقونو پورې اړوند مسايل تشخيص او تضمينوي.

په ۱۹۶۵م. کال د ملګرو ملتونو د عمومي ټولنې له خوا د هر ډول تبعيض د له منځه وړلو نړيوال تړون تصويب شو. دا تړون په دريو برخو او ۲۵ مادو کې د هر ډول تبعيض او توپير د له منځه وړلو تضمينونه اوسپارښتنې لري.

د ۱۹۶۶م. کال د دسمبر په ۱۶ نېټه د سياسي او مدني حقونو نړيوال تړون تصويب شو. دا تړون شپږ برخې لري چې په ۵۳ مادو کې د نړۍ په هېوادونو کې د افرادو په سياسي او مدني حقونو پورې اړوند مسايل، ژمنې او تضمينونه رانغاړي او د يو نړيوال تړون په توګه يې وړاندې کوي.

د ۱۹۶۷م. کال د نومبر په اوومه نېټه د ښځو په وړاندې د هر ډول تبعيض د له منځه وړلو اعلاميه تصويب شوه.

د ۱۹۶۸م. کال د اپرېل له ۲۲ څخه د مې تر ۱۳ نېټې پورې په تهران کې د بشر د حقونو د اعلامېې له تصويب څخه وروسته په تېرو شلو کلونو کې د بشري حقونو په ډګر کې د ترسره شوو پرمختګونو د ارزولو او څېړنې په منظور غونډې وشوې او په ۱۹ مادو کې يو پرېکړه ليك تصويب شو چې د بشري حقونو په ډګر کې د تر لاسه شوو برياليتوبونو او د هغوی د ملي او نړيوالو تضمينونو په اړه يې ژمنې او سپارښتنې درلودې.

په ۱۹۷۹م. کال کې د ملګرو ملتونو عمومي غونډې د ښځو کنوانسيون تصويب کړ. د ښځو په وړاندې د تبعيض د له منځه وړلو اعلاميه يې په دېرشو مادو کې تصويب کړه. په

۱۹۹٤م. کال د نړۍ ۱۲۵ هېوادونو د ښځو کنوانسیون تصویب کړ چې افغانستان هم په دې ډله کې شامل دی.

د ۱۹۹۰م. کال د آگست په اوومه (د ۱۳٦۹ هـ. ش کال د زمري ۱۵) نېټه په قاهره کې د اسلامي کنفرانس سازمان د غړو هېوادونو د بهرنیو چارو وزیرانو په غونډه کې د بشر د حقونو اسلامي اعلامیه تصویب او اعلان شوه. په دې اعلامیه کې په ۲۵ مادو کې د اسلام د سپېڅلي دین له مخې د بشري حقونو په اړوند مسایل ښودل شوي او وړاندې شوي دي.

د متن لنډیز:

د بشري حقونو د تشخیص او تامین په اړه د نړیوالو هلو ځلو لړۍ ډېره خوره او اوږده ده. دا بهیر په ډېره چټکۍ پرمخ روان دی، د سیاسي او ټولنیزو مسایلو په سر کې ځای لري او زیات پام ورته کېږي. بشري حقونه د ټل لپاره خوندي دي او هېڅکله یو انسان ترې نه بې برخې کېږي. کېدای شي یو شمېر یې د یو مهال لپاره وځنډول شي، لکه د جگړو، اړودوړ او کورني اخ و ډب پر مهال. د بشري حقونو بنسټ انسانیت دی او هر چېرته چې انسان دی، یو شان حقونه لري. اسلام لومړنی دین دی چې بشري حقونه یې تضمین کړي دي. وروسته بیا په لوېدیځې نړۍ کې د بشري حقونو اصطلاح وزیږېده. مخینه یې نسبتا اوږده ده. بشري حقونو په اوسني مفهوم په اووه لسمې میلادي پېړۍ کې د اروپا د سیاسي نظریاتو بهیر ته لاره وکړه. تر هغې راوروسته په یو شمېر غونډو کې یو لړ پرېکړې وشوې، بشري حقونه یې تنظیم او د هغې درناوی او حمایت یې د هر چا، په تېره د دولتونو دنده، وگڼله. د یو لړ سیاستوالو په اند حکومت د حاکمانو او رعیت تر منځ د یو ټولنیز تړون پر بنسټ ولاړ دی. رعیت تر هغې د اصولو او قوانینو په منلو مکلف دي چې حکومت د خلکو د بشري حقونو ساتنه کوي. حکومت تر هغه قانوني گڼل کېږي چې په منظمه توگه د خلکو د بشري حقونو ساتنه کوي.



## فعالیتونه

۱ـ څو تنه زده کوونکي دې د ټولګي مخې ته راشي او نورو ته دې ووايي چې د هغوی په اند بشري حقونه څه شی دي. اسلام بشري حقونو ته په کومه سترګه ګتلي؟

۲ـ د ټولګي زده کوونکي دې پر درېو ډلو ووېشل شي. هره ډله دې په ترتیب د بشري حقونو، د ښځو د حقونو او ماشومانو د حقونو په اړه خپل معلومات ولیکي او په پای کې دې يې نورو ته ووايي.

۳ـ بشري حقونو څه ډول پراختیا موندلې ده او تر اوسه يې کوم پړاوونه وهلي دي؟ څلور تنه زده کوونکي دې د متن پر بنسټ خپل معلومات نورو ته وړاندې کړي.

٤ـ زده کوونکي دې فکر وکړي چې کوم بشري حقونه په يوټاکلي حالت کې ځنډېږي. دوه تنه دې د نورو په وړاندې پرې رڼا واچوي. ټول زده کوونکي کولای شي په خپل واربه دې اړه خپل نظر وړاندې کړي.

۵ـ په خپل هېواد کې بشري حقونو ته په کومه سترګه ګورئ؟ هغه څنګه ارزوئ؟ آيا په دې هکله په خپل هېواد کې کومو حدودو ته ځای ورکوئ؟ پنځه تنه زده کوونکي دې په دې اړه خبرې وکړي.

٦ـ زده کوونکي دې څو اصطلاح ګانې پيدا او له ترکيبونو سره دې يې پرتله کړي.



## کورنۍ دنده

د بشري حقونو د اړتیا او ارزښت په اړه يوه مقاله ولیکئ.

> خومره چې هڅول اغېزمن واقع کېږي، تنبيه هغومره نه کېږي.
>
> (آګا تاکریستي)

## اته ویشتم لوست

# ادبي معاصر نثر




نظم او نثر دواړه د مفکورو او مفاهیمو د لېږدولو وسیلې دي. نثر د نظم په پرتله ډېر کارول کېږي. لامل یې دادی چې نثر اسان دی، هر لیکونکی یې لیکلای شي او هر ډول موضوع پکې بیانولای شي.

نظم بیا د نثر په مقابل کې ستونزمن دی، ځکه وزن او قافیه پکې اړینه ده. نثر د معنا، لفظ او مهال له مخې ډېر ډولونه لري چې یو یې ادبي معاصر نثر دی. په دې لوست کې یې تاسې ته در پېژنو:

ـ که ورځنۍ خبرې په لیکنۍ بڼه وي، په څه نامه یادیږي؟

نثر عربي کلمه ده، د شیندلو او پاشلو معنا لري. په اصطلاحي معنا سره نثر هغه کلام دی چې وزن او قافیه و نه لري. ادب خیړونکي د ادبیاتو د اوسني تعبیر له مخې د یوې ژبې ټول لیکلي (تحریري) او نالیکلي (شفاهي) منظوم او منثور اثار چې هنري ارزښت ولري، ادبیات ګڼي. دغه ادبي هنري اثر باید په داسې ژبه بیان شوی وي چې هم د ټولنیز ژوند هینداره وي او هم په لوستونکي او اوریدونکي کې یو عاطفي احساس پیدا کړي. په هنري او ادبي لیکنو کې د لیکوال ذوق، احساس او تمایلات د واقعیت او مطلب د افادې لپاره بنسټیز حیثیت لري.

لیکوال هغه څه چې لیدلي، اوریدلي، احساس کړي او یا یې په ذهن او خیال کې تېرېږي، بیانوي، خو د تحقیقي او علمي لیکنو په څېر دلیل راوړلو ته هېڅ اړتیا نه لري. هنریت یا هنري ارزښت هغه ځانګړنه ده چې ادبي او غیر ادبي لیکنې سره بېلوي. په ادبي لیکنو کې د لیکوال په استعداد او فني مهارت پورې اړه لري چې انساني رواني حالات، د خلکو هیلې او غوښتنې، جذبات او احساسات او عواطف په الفاظو کې ځنګه انځور او راونغاړي؛ مقابل لوري (لوستونکي یا اوریدونکي) ته یې ولېږدوي او د هغه په عواطفو کې خوځښت راولي.

پښتو ژبه ډېر هنري ادبي اثار لري چې بېلګې یې په نا لیکلي او لیکلي ډول په نظم او نثر کې موجودې دي. په منثورو کې له مسجع نثر نه نیولې د نن ورځې تر روانو، ساده او د هنر او ښکلا په ګاڼه سمبال نثرونه هم شامل دي.

پښتو ادبي نثر له (۱۹۵۰) عیسوي کال نه وروسته وده او پراختیا موندلې ده. ادبي ټوټه، لنډه کیسه، ناول، داستان، رومان، ډرامه، طنز د نني ادبي او هنري نثر بېلګې دي چې په لاندې ډول یې در پېژنو:

۱ـ ادبي ټوټه

د هنري ادبیاتو یو ځانګړی ډول دی چې د شکل په لحاظ له لنډو کیسو څخه وړه وي او مضمون په لحاظ هر ډول مطالب پکې راتلای شي.

په ادبي ټوټه کې شاعرانه تخیل کم وي، واقعي پیښې پکې څېړل کېږي او لوبغاړي یې هم واقعي خلک وي.

د معاصر هنري نثر دغه ډول، ځینو ادیبوهانو د (منثور شعر) په نوم هم یاد کړی دی.

ځکه اصلاً نثر دی، خو شعري کیفیت لري. د یو حقیقت او واقعیت په اړه په حکایوي بڼه په زړه پورې تشریح او توضیح کوي. دا توضیح او تشریح په داسې رنګینو الفاظو کې نغښتې وي چې په بشري احساس او عواطفو ژور اغېز کوي.

د ادبي ټوټې غوره بېلګې د پښتو ژبې د معاصر ليکوال او نثر ليکونکي ګل پاچا الفت په غوره نثرونو کې موندلای شو. لکه: دوه جنازې، دوه دهقانان او نور.

۲_ لنډه کيسه

په لويديځ ادب کې (Short Story) بلل کېږي. لنډه کيسه د نثري کيسو يو ډول دی، لنډه او له داسې عناصرو څخه جوړه وي چې يو له بله سره تړلي او يو د بل تر اغېز لاندې وي.

موضوع د خپلو حدودو په چوکاټ کې رانغاړي، بې ضرورته خبرې پکې ځای نه لري، د تاثر او اغېز يووالی پکې يوازينی شرط دی. بېلګه يې د امين افغانپور ((موسکا)) ده.

۳_ ناول

ناول (Novel) د لاتيني ژبې کلمه ده. لغوي معنا يې نوی، تازه او عجيبه څېز دی.

په ادبي اصطلاح کې هغې ادبي نثري کيسې يا داستان ته وايي چې له لنډې کيسې څخه لوی او له رومان څخه لنډوي. په ليکني چوکات کې يې طرح، اصلي او فرعي کرکټرونه، مکالمې او د کيسې پيل، منځ او پای لري.

له لنډې کيسې سره يې توپير په دې کې دی چې هم پکې پېښې په تفصيل سره بيانيږي او هم يې کرکترونه زيات وي. د پښتو ناول بېلګه د برهان الدين کشکي ((پټه مينه)) ده.

٤_ رومان

رومان فرانسوي کلمه ده، په ځينو فرهنګونو کې يې معنا خيالي داستانونه او په ځينو کې د مينې او محبت کيسې راغلي دي.

په ادبي اصطلاح کې هغې کيسې ته ويل کېږي چې له ناول څخه اوږده وي.

د ژوند ډېرې او بېلا بېلې خواوې پکې منعکس شوې وي او د بېلابېلو پيښو انځور په ادبي قالب کې ځايوي.

د جوړښت په لحاظ له ناول سره دومره توپير نه لري، يوازې د موضوع په انتخاب او د واقعيتونو په څېړلو کې توپير لري. هغه دا چې په ناول کې هميشه واقعيتونه د علمي اصولو له مخې څېړل کېږي، خو په رومان کې په خيالي ډول. يعنې کوښښ کېږي چې خيالي واقعات لوستونکي ته په ريښتينې بڼه وړاندې کړي.

۵_ داستان

داستان د حماسي ادب يو ځانته فورم دی. د جوړښت په لحاظ تر وړې کيسې لوی او له ناول څخه وړوکی وي.

ځرنګه چې داستان حکایتي بڼه لري، نو د ناول په تناسب يې تخيلي جنبه زياته وي.
په داستان کې د هنري قهرمان پر ژوند پوره رڼا اچول کېږي او د ګډون کوونکو شمېر يې هم دوره کيسې د ګډون کوونکو په پرتله زيات وي.

٦ـ ډرامه

له يوناني کلمې (ډراو) نه مشتق شوې چې د عمل او کړنو معنا لري. (تفصيل ته يې اړتيا نشته، د مخه لوستل شوې ده.)

٧ـ طنز

طنز عربي کلمه ده. فرهنګونو د طنز لغوي معنا ناز او کرشمه، پېغور او مسخره کول راوړي.
په ادبي اصطلاح کې د هنري ادبياتو يو ډول دی چې په ليکنه کې يې د ليکوال اصلي مقصد نيوکه (انتقاد) وي، خو انتقاد يې د شوخی په بڼه او يا په بله وينا د تمسخر په جامه کې نغښتی وي.
د وينا لمن او اندازه يې په زړه پورې او د ټوکو ټکالو په شکل وي. زياتره وخت پکې مسايل سرچپه (معکوس) مطرح کېږي.
طنز په واقعيت کې هغه ترخه خندا ده چې د ټولنې د خلکو پر ناوړه اعمالو، عاداتو، اخلاقو او افکارو باندې کېږي. بېلګه يې د عبدالمنان ملګري ((شريک بالاپوش)) ده.

٨ـ ادبي راپورتاژ

د هنري ادبياتو يو ځانګړی ژانر دی. له عادي راپورتاژ سره يې اصلي توپير دادی چې په ادبي راپورتاژ کې د پيښې تعبير، تفسير او تحليل په ادبي او هنري ژبه شوي وي. د دې ډول راپورتاژ ليکونکی پېښو ته په دقيق نظر ګوري او له هغو ځخه خپل برداشت د تخيل په ملتيا په خوږه هنري ژبه وړاندې کوي. بېلګه يې د محمد نواز طائر ((ناليدلی سوات)) ده.

٩ـ سفرنامه

په سفرنامه کې سفر کوونکی خپلې خاطرې د قلم په ژبه او د ادب په ادا خوندي کوي او راتلونکو نسلونو ته يې د يادګار په شکل پرېږدي.
په نړيوال ادب کې سفرنامې اوږده مخينه لري. په سفرنامه کې د علمي تحقيقاتو لپاره په زړه پورې مواد پيدا کېږي. د پوهاند رښتين ((د هند سفر)) بېلګه ده.

١٠ـ ادبي ليکونه

دا هغه ليکونه دي چې په ځانګړې ادبي او هنري بڼه ليکل کېږي.

په ادبي ليکونو کې يو لړ مهم انتقادي، سياسي، فلسفي او ادبي مسايل ليکل او د اديبانو تر منځ تبادله کېږي. د ليکنې ژبه يې هنري او د تخيل رنګ پرې غالب وي. له استعارو، کنايو، تشبيهاتو او نورو ادبي صنعتونو څخه پکې کار اخيستل شوی وي.

ژبه يې خوږه او د ليکنې طرز يې دومره په زړه پورې وي چې لوستونکي يې په لوستنه نه مړېږي. بېلګه يې د بېنوا ((د زړه خواله)) ده.

د متن لنډيز:

د اوسني تعبير په اساس د يوې ژبې ټولې ليکنې او ګړنې، منظوم او منثور آثار چې هنري ارزښت ولري، ادبيات ګڼل کېږي.

په هنري نثر کې ليکوال ټول مفاهيم د الفاظو په قالب کې په تخيلي ځواک سره ځايوي.

دغه تخيلي ځواک په بشري احساس او عواطفو ژور اغېز کوي او را پاروي يې.

هنريت يا هنري ارزښت هغه بنسټيزه ځانګړنه ده چې ادبي ليکنې له نورو غير ادبي ليکنو څخه بېلوي.

معاصرې ادبي هنري ليکنې د بڼې له مخې لاندې ډولونه لري:

ادبي ټوټه، لنډه کيسه، ناول، رومان، ډرامه، طنز، ادبي ليکونه، ادبي راپورتاژ ... .

## فعاليتونه

۱ـ زده کوونکي دې متن په پټه خوله ولولي او مفهوم ته دې ځير شي.

۲ـ درې تنه زده کوونکي دې په وار سره د ټولګي مخې ته راشي، د متن اصلي مفهوم دې ووايي.

۳ـ څلورتنه زده کوونکي دې په وار د ټولګي مخې ته راشي او د ادبي معاصر نثر په اړه دې يوه يوه دقيقه خبرې وکړي.

٤ـ د زده کوونکو د شمېر په پام کې نيولو سره دې ټولګی په دوو ډلو ووېشل شي. يوه ډله دې په خپل وار سره د حرکتونو له لارې تراژيدي او دويمه ډله دې يوه کميډي ننداره تمثيل کړي.

۵ـ زده کوونکي دې په څلورو ډلو ووېشل شي، هره ډله دې د خپل شعر په اړوند يو راپور

ترتیب کړي. د ډلې استازی دې د خپلې ډلې په استازیتوب د خپلې ډلې ترتیب شوی راپورتاژ نورو ته ووایي.

۶ـ زده کوونکي دې لاندې پوښتنو ته ځوابونه ووایي:

- ادبي هنري نثر له نورو نثري لیکنو سره څه توپیر لري؟
- یوه لنډه کیسه له کومو توکو څخه جوړه وي؟
- د ناول او لنډې کیسې توپیر په څه کې دی؟
- ادبي راپورتاژ او ژورنالیستکي راپورتاژ څه توپیر لري؟
- طنز له ډرامې سره څه توپیر لري؟
- څو ډوله ډرامې پیژنئ؟
- ډرامه خپل پیغام څنګه لیدونکو ته وړاندې کوي؟

۷ـ دوه تنه زده کوونکي دې د ټولګي په وړاندې د هر ادبي هنري نثر په اړه په لنډیز درې درې دقیقې خبرې وکړي.




زده کوونکي دې په کور کې د پښتو نثر د ودې په اړه یو مطلب ولیکي چې تر لس کرښو کم نه وي او د بلې ورځې د پښتو مضمون په ساعت کې دې ووایي.

د پښتو معاصر نثر لاندې بېلګه ولولئ او خوند ترې واخلئ.

## شعر او ادب

"شعر او ادب" د استاد ګل پاچا الفت د غوره نثرونو یوه بېلګه ده. ګل پاچا الفت د پښتو ادبیاتو یوه وتلې څېره ده. نوموړي ډېر خوندور شعرونه او نثرونه لیکلي دي. د هغه په هر شعر او نثري ټوټو کې ټولنیزې ناخوالې په ډېر سم او ښه شان انځور شوي. د وخت د ټولنې پر اوړو یې له سپرو کسانو څخه شکایتونه کړي دي. الفت د خپلو شعرونو او نثرونو له لارې ټولنې ته لارښوونې کړې او د ژوند د اصلي تګلارې په لور یې روان کړي دي.

دلته د هغه د نثري ځواک د لا روښانتیا په موخه مو دا لاندې بېلګه د هغه له غوره نثرونو څخه

ټاکلې ده. هيله ده چې تنده به مو پرې ماته شي. بايد يادونه وکړو دغه نثر سره له دې چې د شعر په اړه تحليلي رنګ هم لري، خو ادبي رنګ يې د هغه د خواږه نثر ډېره ښه څرګندونه کولای شي.

"د انسان په وجود کې دوه شيان ډېر عزيز معلومېږي چې يوه ته زړه او بل ته دماغ وايي.

له دماغ نه علم او فلسفه پيدا شوه، له زړه نه شعر او ادب.

اروپايان زړه د عواطفو او نفسي احوالو ځای ګڼي، مسلمانان د ايمان او عقيدې ځای ته زړه وايي.

صبر، رحم، کرم، شجاعت د زړه کار دی. عشق او مينه په زړه کې وي. شعر له زړه نه الهام اخلي او له زړه سره کار لري. داروين وايي: (هغه لوی کمال چې د تحول او تکامل په لاره کې يوازې د انسان په برخه رسېدلی او نور ژوي ترېنه محروم دي، د انسان قلبي عواطف دي چې په رحم، مروت، کرم، شجاعت نوعه پرستی ترېنه تعبير کېږي. که انسان غواړي چې له حيوانيت نه لرې وي بايد دغه عواطف ښه وروزي).

د عواطفو روزل د شعر کار دی او شعر ته د عواطفو او احساساتو د ظهور او تجلياتو کوه طور ويلی شو. څنګه چې د لمر وړانګې او پلوشې لومړی ځل د لوړو غرو په څوکو پرېوزي او وروستی وداع هم د غرو له څوکو سره کوي، دغسې د عواطفو او احساساتو پرتو هم د شاعر پر زړه له نورو نه زيات لوېږي او ځينې زړونه، لکه: د غرو سمڅې او غارونه دغه رڼا يا بيخي نه ويني يا يې ډېره لږه ويني، همدغه عواطف او احساسات چې د شاعر له زړه نه الفاظو ته رانقل شي، شعر ترې جوړ شي او په زړونو اثر کوي.

هو! د شعر موضوع ښکلي خيالات، عالي احساسات، د زړه تاثرات، د غم او خوشحالۍ خوبونه، د روحي او جسمي ښکلا اغېزې او عشق و محبت دی. که دغه شيان په يوه ښکلي تعبير او ښو الفاظو کې بيان شي چې د فصاحت او بلاغت مراعات پکې په ښه شان شوي وي، شعر ترېنه جوړ شي او ډېر ښه شعر هماغه دی چې په دغه معيار برابر وي.

څومره چې د يوه شاعر فکر او خيال آزاد وي او د محدوديت له قيودو راوتلی وي، هغومره يې شعر لوړ او عالي وي. که يو شاعر د نورو په شان هر چاته او هر شي ته سر ټيټوي او په فکر کې يې د بغاوت جذبه نه وي موجوده، له هغه نه د ښه شعر هيله نه شي کېدی. شاعر بايد د فکري انقلاب علمبردار او بت شکن وي. شاعر ته نه ښايي چې د زاړه منطق درس د عقل له زاړه بوډا نه واخلي او په زړه لاره په زاړه فکر پسې لاړ شي. د شاعر خيال بايد ډېر لوړ پرواز وکړي او له ډېر هسک

ځایه دغه جهان ته وګوري. د شاعر نظر باید نورو غونډې نه وي او هر څه په بل شان ووینې، د شعر او ادب ژوند د فکر په ابتکار کې دی او تقلید یا ابتذال د شاعر مرګ دی. د شعر او ادب دنیا په دلدارۍ او دلبرۍ ولاړه ده. شاعر باید په هر څه او په هر وخت کې زړه ته رجوع وکړي او ډېر حساس زړه ولري. هغه چې په زړونو کې هیجان، تاثر او حساسیت نه شي پیدا کولی او زړونه نه خوځوي، شاعر ورته نه شو ویلی.

که دا خبره رښتیا وي چې انسان په هر وخت او په هر حال کې د زړه په خوښې پسې روان دی او زړه په دماغ باندې حکومت لري؛ یعنې د عقل ادراک د قلبي تمایلاتو له تاثیر لاندې وي، نو ویلی شو چې د یوه ملت عقلي او ذهني سیر او حرکت هم د شعر او ادب تابع وي او شاعران په نفسیاتو او روحیاتو کې بدلون او تحول راوستلی شي. همدغه شعر دی چې په زړونو کې زلزلې او توپانونه پیدا کوي او کله پکې داسې صبر او سکون ږدي چې غرونه یې ثبات او استقامت ته حیران وي. که دا رښتیا وي چې د چرګانو په نارو ویده خلک له خوبه پاڅېږي، نو دا باید ومنو چې د شاعرانو په نغمو د یوه ملت مړه احساسات او جذبات راویښېږي او په دې اسرافیلي شپېلۍ کې بل راز تاثیرات موجود دي.

کوم فیلسوف چې هر څه بدګڼي او زنده‌ګي توره په نظر ورغلې ده، هغه هم شعر ته ښه ګوري او شعر د انسان لپاره یوه ښه پناګاه بولي.

شوپنهاور وایي: ټولې بدبختۍ د انسان له نفس څخه نشات کوي او له ژوند سره ډېر مصیبتونه او غمونه ملګري دي. که څوک یوه داسې چاره لټوي چې له بدبختیو نه لږ غونډې په امن کې شي، باید په صنعت او هنر کې مستغرق شي او د ښکلا په مظاهرو کې ځان ورک کړي. په دغه حال کې سړی په ظاهره له خلکو سره وي، مګر په معنا کې یوازې وي او دنیا ورته لکه یو سراب معلومېږي چې د ده لمنه نه شي لمدولی. په همدغسې بېخودۍ کې انسان د دنیا له شر او شوره اسوده کېږي او د بې نیازۍ مقام ته نږدې کېږي چې غیر له حقایقو بل شي ته متوجه نه وي، دغه صنعت او هنر چې د شوپنهاور په نظر کې د ښکلا مظهر دی او دی ورته ښه پناګاه وایي، شعر دی.

که چېرې په دغه غم لړلي جهان کې د سعادت او نیکبختۍ پلوشو کله کوم کور رڼا کړی وي، هغه به د شعر کور (بیت) وي. د شاعر خیالي دنیا تر ډېره حده له غمونو او مصیبتونو نه پټه ده او هلته داسې بې درد سره بېخودي شته چې له سړي نه هر څه هېروي. تاسې شعر و ادب ته په عادي او معمولي نظر مه ګورئ، د شعر تومنه او قدسیت په نظر کې ونیسئ.

هغه څه چې په زړونو کې پیدا کېږي او په زړونو اثر کوي، هغه عادي او معمولي څیز نه وي.

دا د غم او خوشحالۍ ترانه د انسان په ژوندانه کې ډېره زیاته اغېزه لري او انسان ترېنه هېڅکله نه شي بې نیازه کېدی. د یوه ملت ژبه، کلتور، اخلاق په شعر او ادب ساتل کېږي. د یوه ولس د ذوق او شعور، د فکر او خیال د احساساتو او عواطفو هنداره شعر او ادب دی. هر څومره چې د یوه ملت شعر او ادب عالي وي، هغومره یې اخلاق، نظر او روحیات لوړ وي او له لوړو ملکاتو او انساني فضایلو سره یې ارتباط او تعلق زیات وي.

شعر او ادب د بشر علایق له دین او مذهب سره ټینګوي او په هوښیارۍ کې بینایي او همدردي پیدا کوي. کله چې زړونه کلکېږي یا تورېږي، نو شعر پکې رقت او صفایي پیدا کولای شي. هغه څه چې انسان د مادیت له غلامۍ او بت پرستۍ نه ساتي، شعر دی.

عارفانه ذوق انساني عاطفه، حکیمانه شعور د شعر په نغمو وده کوي او د حسن نظر علایق همدغه شی ساتي. کوم ملت چې شاعر نه لري، زړه نه لري، سترګې نه لري، عواطف نه لري او د ذوق له خونده محروم دي.

شاعران دا کولای شي چې د انسان فرعوني غرور په تواضع بدل کړي او د دوهۍ ملنګ ته د شاه جهان خوی او مړې سترګې ورکړي. غم او سرور د شاعر هدیه ده چې له زړونو څخه یې اخلي او زړونو ته یې ورکوي، نو کوم قدر او قیمت چې د انسان په بدن کې زړه لري، په یوه جامعه کې یې شعر او شاعر لري."

د کتاب او تعلیمي کال د پای په بهانه یوڅو خبرې

## ګرانو زده کوونکو!

تاسو د سږني تعلیمي کال د پیل ورځې په یاد کړئ. وګورئ، هغه مهال مو د پوهې کچه څومره وه او اوس څومره ده؟ ستاسو په سلوک او چلن کې څه او څومره بدلون راغلی. آیا نړۍ درته هماغسې ښکاري، لکه د کال په پیل کې چې مو لیده؟ فکر او ذهن مو څومره بدل شوی دی؟ پوهه مو څومره زیاته شوې؟ په لیکلو کې مو څومره ورتیا تر لاسه کړې؟ د موضوع ګانو د تحلیل او ارزونې ځواک مو څومره غښتلی شوی؟

که د دې ټولو په توپیر وپوهېدئ، نو څرګنده ده چې زده کړه مو کړې ده او یو څه مو تر لاسه کړي دي. دلته هرڅه، یعنې لوستونه، په ناڅاپي او اتفاقي توګه نه دي راغلي او نه دي لیکل شوي. د هر یو لوست د ټاکلو په اړه ډېر سوچ شوی. د هرمتن د لیکلو په اړه ډېر فکر شوی، کوم مطالب

په کومه ژبه له کوم پیغام سره ولیکل شي او تاسو هغه څنګه زده کړئ. د کتاب لیکوالو هڅه کړې، د پښتو ژبې او ادبیاتو په اړه تاسې ته داسې رنګارنګ پوهه اومعلومات چمتو کړي چې ستاسو په فکر، چلند او وړتیا کې د بدلون احساس رامنځ ته شي.

هیله ده دا هرڅه ستاسې پوهه، ستاسو ذهنیت او ستاسو وړتیا او د لید لوری لا پسې پراخه کړي او د خپل مسؤولیت پر درک او پېژندلو، د اسلامي ټولنې د یوه سالم او رغنده غړي په توګه ځان، کورنۍ او هېواد ته د خدمت جوګه شئ. و من الله توفیق

## فعالیت

زده کوونکي دې د تعلیمي کال د پای په ورځو کې یوه ورځ د خپل ټولګي دننه یوه منظمه غونډه جوړه کړي. د غونډې جوړښت دې د مخکنیو غونډو په څېر تنظیم کړي. بیا دې هر زده کوونکی د تېر تعلیمي کال په اوږدو کې د خپلې پوهې په اړه مفصلې خبرې وکړي. که نیوکې لري، په ګوته دې یې کړي. که د نیمګړتیاوو په اړه سپارښتنې یا وړاندیزونه لري، له ډاره پرته دې په څرګنده ووایي. له ښوونځي، ښوونکي، درسي کتابونو او د دې کتابونو له لیکوالو څخه دې خپلې غوښتنې مطرح کړي. د غونډې مشر دې غونډه رهبري کړي. مرستیال دې مرسته ورسره وکړي. منشي دې د وینا والو نومونه د وار لپاره په لست کې ولیکي. د غونډې وياند دې له لازمو تبصرو سره یوځای ویناوالو ته نوبت ورکړي. په پای کې دې د غونډې مشر غونډه واروزي او د پای وینا دې واوروي. غونډه دې د یو پرېکړه لیک په خپرولو پای ته ورسوي.

و من الله التوفیق

یو الماني متل دی، وايي:

((که د کار پای ښه و، هرڅه ښه دي.))



**((الف))**

ابتذال: بې ارزښتي، ډېر تکراري

ابهام: پېچلتیا، ناخرګندتیا (بټه ګوته)

اتل: قهرمان

اتلولي: قهرماني

اجل: د ژوند پای، د مړینې مهال، مرګ، د هر شي مهلت او وخت

احاطه: د یو شي شاوخوا، پر یو شي لاسبرى

احسان: نیکۍ کول، چاته یوشی ښښل، د یو چا د بدۍ په وړاندې نیکي کول

اخلاص: رښتینولي، د نیت خاصوالی

اخلاق: د ټولو خلکو له خوا د اصولو او ارزښتونو ټولګه (مجموعه) چې د یوې ټولنې د یوه فرد د چلند سموالی یا ناسموالی او ښه والی یا بدوالی ټاکي. چلن، خوی، منل شوي خویونه

ادب: د اخلاقي منل شوو اصولو په چوکاټ کې منل شوی چلند، د ژوند د سمو لارو چارو، دود او فرهنګ پېژندنه

ارادت: له درناوۍ سره یوځای مینه او علاقه، غوښتنه، قصد

ارزول: ارزیابي کول، تلل

اژدره: اژدها، ښامار

استعاره: د تشبیه له مخې یو مجازي بیان، پټه او ناخرګنده خبره

استمرار: پرله پسې والی

اسرار: پټ شیان

اعتراف: منل، خوله خوځول

اغېز: تاثیر

افراط: ډېروالی

افق: د آسمان غاړه، هغه لیکه چې سرې انګیرې آسمان له ځمکې سره لګېدلی دی، ساحه، د لید ساحه، د لید افق

الحان: خواږه اوازونه چې انسان یا ځینې الوتونکي او یا موسیقي یې تولیدوي

الله اکبر: خدای تر ټولو لوی دی

الهام: هغه فکر چې ناڅاپه په ذهن کې پیدا کېږي، د خدای ﷻ له لوري د یو چا په زړه کې د یو امر رامنځ ته کېدل

امت: د یو پیغمبر او یو دین د پیروانو مجموعه

امین: هغه شخص چې امانت نه خیانتوي، د ډاډ وړ، رښتینی

اند: فکر

اندام: غړي

انقلاب: په اقتصادي، سیاسي، ټولنیز یا فرهنګي نظام کې شدید او ناڅاپي بدلون، ناکراري، هیجان، اخ و ډب ...

انټرنیټ: نړیوال جال

انځورګري: رسامي، نقاشي

انګیرل: په پام کې نیول

اوج: لوړه پوړۍ
اوره: اوربښت
اوریځیو: وریځې
اوزان: وزنونه: عروضي وزنونه
اوکوب: برم، جلال
اوځار: روښانه، څرګند
اوډون: اډانه: ترتیب، اوډل
ایاز: خوځنده سړه هوا، نسیم،
ایدیالوژي: ځانګړې لید او پوهه چې انسان یې د ځان، ټولنیز دریځ، ملي وضعې په نسبت لري او توجیه کوي یې
ایکولوژي: د ژوند د چاپېریال پېژندنه
اړ: محتاج
اړین: ضروري

((ب))

باتلی: بوتللی، وړی
بامي: د یو ګل نوم دی
بانډه: کلی، ګوښه او یوځای پراته څو کورونه
بخره: برخه
بدیع: نوی، تازه، ښکلی، ادبي پوهه چې په کې د شعر او نثر د ښکلا په اړه بحث کېږي.
برائت: له جرم، نیمګړتیا، تور او داسې نورو څخه خلاصوالی، بیزاري، تنفر، ...
بربند: لوڅ
برم: دبدبه
برهم: ویجاړ، خراب
بریا: بری، لاسته راوړنه
برید: پوله، سرحد
بریمن: بریالی
بصر: سترګه
بغض: کینه، دښمني
بقا: پایښت
بلاغت: له وینا سره سم د وړ کلمو او جملو کارونه چې پوهې ته ډېر نژدې وي.
بلوسي: تېری، تجاوز
بلیغ: وېناوال، د وینا کولو وړتیالرونکی
بنا: وداني
بهیر: جریان
بوره: زوی مړې
بوډا: زوړ، سپین ږیری
بیعت: د یو چا د امر او اطاعت د منلو ژمنه چې معمولاً په لاس ورکولو سرته رسیږي، د یو چا مشرتوب او رهبري منل
بډای: شتمن
بډې: رشوت
بڼه: شکل، صورت
بېلګه: مثال، نمونه

((پ))

پالل: روزل
پانګه: سرمایه
پاڼ: د شونډو د سره کولو پاڼه /کنده
پت: ناموس

پته: آدرس
پدیده (ښکارنده): یو شی، یو توکی
پرتله: مقایسه
پرتم: دبدبه
پرتمین: شکوهمند
پرته: بېله
پرتو: شعاع، وړانگه
پرښته: ملایکه
پرگنه: ولس، خلك
پلازونه؛ پلاز: پایتخت
پلاوی: هیات
پلور: پلورل، خرخول
پلی: پیاده
پنځېدل: زېږېدل
پوله او برید: حد، اندازه
پوړکی: قشر
پوړی: درجه
پوښاك: جامه، لباس
پیلامه: پیل، لومړی برخه
پړه: ملامتي
پېر: پلا، وار

((ت))

تاړاك: برید
تتبع: څېړنه
تجویز: د یو کار جایز شمېرل
تدبیر: د یوې ستونزې یا یوې مسئلې د هوارې لپاره د یوې لارې سنجول، د یوې چارې په اړه فکر کول
ترار: پرېشان
تراژیکه یا تراژیدي: غم او خپگان
تربگني: دښمني
ترورېمی: تپه تیاره
تصوف: په مسلمانانو کې د معرفت، خدای پېژندنې او روزنې لاره چې زیاتره د دنیوي اړیکو له شلولو سره یوځای وي.
تصویب: له یوې طرحې، وړاندیز، قانون، مقررې سره د چارواکو او واکمنانو موافقت
تعامل: یو پر بل اغېز، پېر و پلور
تعجب: په انسان کې د یو غیر منتظره شي له لیدلو، اورېدلو او یا چلند څخه راولاړ شوی حالت
تعدیل: اړول، بدلول
تعمیم: عامول
تفسیر: څرگند بیان
تقلید: پیښنې
تقوی: ډار، له گناه څان ساتل
تکنالوژي: د صنعت په عملي کارونو کې له علم او پوهنې څخه گټه اخیستنه؛ د ټول لارو چارو او فنونو مجموعه چې د دې کارونې لپاره پکارېږي.
توجیه: د یو کار یا یوې خبرې د سموالي لامل بیانول
توحید: یووالی، وحدانیت
تور نمری: تور + نمري، تورې جامې، د غم

جامې
توکي: ماده، عنصر
تـولا: تکل کول
تون: ځای
توینه: تویوي، تویول
تیره غونې: تیاره، لړه تیاره
تیرى: تجاوز
تړاو: رابطه
تړون: موافقتنامه، قرارداد

((ټ))

ټبار: ټبر، قوم
ټکه: تندر
ټوکېدل: زرغونېدل
ټیکنه: عدالت

((ث))

ثنا: د خدای (ج) ستاینه
ثواب: د نېک عمل په وړاندې ورکړه او پاداش چې په اخرت کې ورکول کېږي، احسان، نېکي

((ج))

جاندم: دوزخ
جوپه: کاروان
جوت: څرګند
جوخت: پیوسته، نښتی
جونګۍ: د اوښې بچۍ
جوهر: د یو چا او یا یو شي ذاتي خصوصیت او ځانګړتیا چې هغه تر نورو بېلوي. حقیقت، د شي اصلي ماده او عنصر
جیفه: د غوښې ټوټه (باسي)
جېل: زندان

((چ))

چاپېریال: محیط
چار: کار
چم ګاوند: ګاونډی، همسایه
چوپړ: خدمت
چیک: له بانک څخه د پیسو د اخیستلو چاپي پاڼه

((ښ))

ښاروان: د قافلې ښارونکی
ښرک: راښکاره کېدنه (لکه د لمر سترګه)، لاربنوونکی، نښه، درک، لټه، پته
ښرنګوالي: کیفیت
ښوار: دا کلمه اوس دود نه ده، کېدای شي د صبر او استقامت معنا ولري
ښومره والی: کمیت

((ځ))

ځان تېرېدنه: سرښندنه، ایثار
ځبېښاک: استثمار

ځغلا: ځغاستل

ځور: ازارول

((ح))

حاجت: اړتیا

حب: مینه

حجاب: پرده، چادري

حدیث: وینا (د حضرت محمد (ص) وینا)

حلم: نرمي

حیثیت: درنښت، دریځ

حایل: پرده

((خ))

خرافاتي: پوچ، بې معنا

خس: لرګي، خاشاك

خفي: پټ

خلعت: هره جامه چې د ناوې کورنۍ یې زوم یا د هغه کورنۍ ته ورکوي، د لویانو له خوا کشرانو ته هر ورکړ شوی سوغات

خول: تاج

خوله خوځول: اعتراف کول، وعده کول

خیر: هغه شی یا کار چې د نېمګرغۍ یا بریالیتوب لامل وي

((د))

دایرة المعارف: د علم، ادب، هنر، ورزش او هغوی ته ورته د نورو شیانو په اړه د بشپړو معلوماتو کتاب چې معمولاً د الفبې په سیستم پیلیږي، انسایکلوپیډیا

در: مرغلره

دریځ: مقام

دعوت: بلنه

دمه: استراحت

دود: رواج

دودیز: رواجي

دیت: خونبها

((ډ))

ډال: سپر

ډالۍ: سوغات، بخشش، تحفه

((ر))

ذقن: زنه

ذکر: د خدای یادول

ذهنیت: د تفکر، لید یا قضاوت یو ډول،

((ر))

ربړه: ستونزه

رجوع: ورګرځېدل

رحمت: زړه سوی او مهرباني

رسالت: د خدای له لوري د پیغام راوړل، د چا پر اوږو د یوې دندې یا مسؤولیت اچول

رضوان: جنت

رقت: زړه سوی
رعيت: د يوې خاورې ټول وګړي چې د يو حکومت تابع وي
رغنده: سم، روغ
رموز: د رمز جمع، پټ، راز،
روحاني: هغه څوک چې په مذهبي چارو بوخت وي، مذهبي شخصيت
روغی: روغتيا
رومان: نثري داستان چې پېښنو يې د انسان له ژوند څخه سرچينه اخيستې وي او معمولاً په کې زيات شمېر شخصيتونه او پېښې موجودې وي.
رونق: د کسب او کار غوښتل شوی او فعال بهير
روهي: په روه پورې اړوند، روه د پښتنو سيمه
روږدی: معتاد، اموخته
ريا: د ظاهر او باطن نه يووالی، په ځانګړې توګه ځان پاک لمنی او نيک عمله معرفي کول
رياضت: د روح د تزکيې لپاره د زيات عبادت او غريزو د پرېښودلو له لارې د ستونزو او سختيو ګالل
رېږدلو: رېږدېدلو

((ز))

زايل: له منځه تلونکی
زرغا: زرغون، شين والی

((ژ))

ژانر: (فرانسوي کلمه ده.) د ادبي او هنري اثرونو ځانګړې بڼه
ژست: د غړو د خوځولو ډول چې يوڅوک يې خپلو غړو او خبرې ته ورکوي
ژمنه: وعده
ژوبله: جګړه او ټپي کول
ژوبلور: جنګيالی
ژورناليزم: د ورځپاڼې ليکنې علمي او فني لار
ژوي: ساکښان

((س))

ساوتګاه: سترې ستومانه
سايل: سوالګر
سار: ساری، بېلګه
سپار: د کرنې وسيله، سپاره
سترتوب: رياست
ستي: سوی، ډېر سوی
ستېه: بېخ
سجع: په وزن او قافيې کې هماهنګي
سجين: دوزخ، د اور کنده
سخ: مرغ، بخت
سخا: ورکړه
سراب: د شيانو خيالي انځورونه چې په تودې هوا کې په دښتو يا واټونو کې د نور د وړانګو د انعکاس څخه رامنځته کېږي او د اوبو په څېر ښکاري.
سرغړوونکي: متجاوز
سرور: خوشالي

سعد: نیک
سکنۍ: سکنځل، سکښتل، پرې کول
سلاکار: سلا ورکوونکی، مشاور
سلوک: لاره، چلن، د روحي پړاوونو وهل چې یو سالک د هغې له لارې نفس تزکیه کوي. (پاکوي)
سما: سم، اصلاح
سنتي: له پخوا څخه دود شوی، پخوانی ریښه ولري.
سه، (ساه): اروا، نفس
سهیل یا سویل: جنوب
سوګوار: غمجن
سېلاني: سیل کوونکی، ګرځندوی

((ښ))

ښکارندوی: څرګند
ښکېلاک: استعمار
ښګینه: فایده،نېکي
ښکې: ښکته، کوز، لر

((ش))

شئونات: اړخونه، جنبې
شار: ښار
شخصیت: د ثابتو او پرله پسې صفتونو او ځانګړتیاوو منسجمه او واحده ټولګه چې یو فرد له بل څخه توپیروي؛ د یو شخص غوره صفتونه چې د نورو په وړاندې د یو چا د اعتبار او درناوي لامل کېږي.
شریعت: طریقه، لاره
شفاهي: په خوله کې، وینایي
شنار: شوم، نامبارک، ننګ او عار ...
شهامت: زړورتیا
شهزی: د پاچا لور

((ص))

صحه: تایید، لاسلیک
صلاح: وړ او مناسب، ګټور

((ط))

طریقت: لاره، د نفس د تزکیې له لارې د حقیقت د ترلاسه کولو سلوک، مسلک،
طنز: په شعر یا نثر د ادبي بیان لار چې پکې فردي او ټولنیز عیبونه او نیمګړتیاوې په خندوونکي ډول برسېره کېږي. موخه یې د بشري چلن سمول وي.

((ظ))

ظلمت: تیاره

((ع))

عار: شرم
عارف: هغه څوک چې د ریاضت، د نفس د تزکیې او تفکر له لارې خدای پېژني
عاصي: ګنهکار
عبقریت: پیاوړتیا، له هرې لارې بشپړتیا

عرفان: د خدای د معرفت لاسته راوړل د رياضت، د نفس د تزکيې او تامل له لار پلټنې.
عسس: څوکيدار، (په ځانګړې توګه د شپې له خوا)
عطف: تړونی

((غ))

غبرګ: ورتاوول
غبرګون: عکس العمل
غچ: بدله، انتقام
غرج: غرجستان
غرور: لويي
غندي: غندل، بد ويل

((ف))

فرهنګ: د دود او دستور، فکر، هنر او د ژوند د لارې پېچلې ټولګه (مجموعه) چې د ولسونو په تاريخي بهير کې تجربه شوې اونورو نسلونو ته د لېږدېدنې وړ وي.
فصاحت: د وينا رواني او څرګندتيا
فصيح: څرګند
فضل: په پوهې، اخلاقو او هنر کې غوره والی، لطف، پام
فطرت: ذاتي ځانګړتياوې، پيدايښت
فقه: اسلامي پوهه چې موضوع يې د شرعي احکامو د ځانګو پېژندنه او د ژوند له ورځنيو چارو سره يې سمول وي.
فقير: بېوزلی، سالک
فلاح: خلاصي، بېغمي
فلک: اسمان، د اووه ګونو اسمانونو هره پوړۍ، په پخواني نجوم کې يې د سپوږمۍ (قمر)، عطارد، زهرې، لمر، مريخ، مشتري او زحل موقعيت له لومړي څخه تر اووم اسمانه پورې تصوروول.
فن: هغه کار چې ورته‌يا، پوهې او تجربې ته اړتيا ولري.

((ق))

قدسيت: پاکي، سپېڅلتيا
قصور: لټي، نيمګړتيا، عيب، د هند په پنجاب کې د يو ځای نوم دی.

((ک))

کامل: هغه څوک يا شی چې ټولې لازمې ځانګړتياوې ولري او لړوالی، نيمګړتيا ونه لري.
کالي، کونډې: د کور لوښي (فرش و ظرف)
کاهل: لټ، تنبل
کراړ: سخت
کرم: لطف، احسان، څواني
کرونولوجي: هغه پوهه چې د پېښو زماني پوړکي او مخينه ارزوي او څېړي.
کلانکار: متکبر

کنایه: پټه خبره چې د ټاکلې او خاصې معنا لپاره کارول کېږي.
کهربا: کلک شوی پټکری، معمولاً ژیړ رنگ لري. شفافه او یا نیمه شفافه وي. ساکنه برښنا لري، نوځکه بوس او واښه راکاږي. د سینگار (تزیین) لپاره کارول کېږي. په درملو کې استعمال لري.
کوثر: د جنت یوه چینه
کوکار: نارې سورې
کولیان: کولي؛ مسلي، هغه خلک چې په کال کې څو ځلې له یوځای یا یو ښار څخه بل ځای او ښار ته کوچیږي او د سندرو ویلو، فال کتلو او نورو دنده لري.
کومیکه: خندنۍ
کټهار: د زړکې نارې
کډوالي: مهاجرت، بل هېواد ته کوچېدل
کړاو: ستونزه، زحمت
کــړم: ټپي،زخمي
کړمن: له کړاوه ډک
کړونگې: ځړوبې، آبشار
کیارۍ: کوراړۍ، د سبو او ترکاریو پټي

((گ))

گاڼه: پسول، زېور
گایل: ټپي
گداز. ویلي کېدل
گردښت: گرځېدل
گواښ: تهدید
گوزڼ: فلج
گړنگ: کنده

((ل))

لا یمس: لاس پرې مه وهه
لاسوندي: سند، ثبوت
لامل: عامل
لاهو: د اوبو پرسر
لاښونو: لاښ
لرغوني: ډېر پخوانی
لویه ورځ: قیامت

((م))

مبعوث: گومارل شوی، لېږل شوی
مترادف: د یو شان معنا لرل
مجاز: (د میم په پېښ ) روا، جایز
مجاز: (د میم په زور) له خپل معنا پرته یوه کلمه پر بلې معنا کارول، غیرواقعي
مسا: موسکا
مستدلې: په دلیل او برهان ثابته شوې، منطقي
مراندې: د کېږدۍ پړي، (د زړه مراندې)
ملکه، ملکات: ځانگړنه

((ن))

ناتار: بد حالت
ناخوال: ناخواله: ناخوالې: ناغوښتل شوی شی یا کار

نامنلی: خراب، د نه منلو
نبوغ: زیاته پوهه او وړتیا
نتلی: ځپلی، خوار
نثار: قربان
نجوم: د ستورو پېژندل
نحس: بد
ندرت: کله ناکله
نشات: راولاړ شوی
نص: آیت
نصوص: آیتونه
نغاړي: تاووي، (نغښتل)
نغښتی: پېچلی
نمنځی چار: متقي، پرهيزگار
نهضت: غورځنگ
نهيلی: نا هيلی، نااميد، مايوس
نوليدل: غمگينيدل
نويل: عيسوي اختر
نيسان: د پسرلي فصل
نيواك: استعمار

((هـ))

هیبت: له درناوي سره گډ ډار چې ځوك يې په چاکې پيدا کوي. ډار، پرتم

((و))

وجدان: د هرچا په باطن کې پټ ځواك يا حس چې د هغه/هغې د پوهې لامل شوی او د هغې له لارې د چال چلند ښه والی له بدوالي شخه بېلوي او تر قضاوت لاندې يې نيسي. د حق او ناحق په وړاندې د يو چا د غبرگون وړتيا
وراره: ورور مرې
ورتې: د اوښکو توپېدل
ورکړه: سخا
وسوس: اندېښنه
وقار: حيثيت، درنښت
ولولينه: پرېمنځي
وياړمنه: سرلوړې
ويرژلي: غمجن
ويرمن: غمجن
ويرنه: غم، مرثيه

((ی))

يانه: يون، خوځښت، حرکت، تگ
يرغل: بريد، حمله
يسير: اسان
يقين: ډاډ

## اخځلیکونه:


۱ـ ادبي فنون، محمد اقا شېرزاد، د ښوونې او روزنې پوهنځی، ۱۳۸٤ کال
۲ـ انترنيت، د تاند ويب پاڼه، د انټرنېټ نورې بېلابېلې پاڼې (سايټونه)
۳ـ په افغانستان کې د ډله ييزو اړيکو د وسايلو لنډ تاريخ، پوهاند محمد کاظم اهنگ ، د سيد محی الدين هاشمي ژباړه، د اريک دگرځنده کتابونو اداره، پېښور، ۱۳۸۰ لمريز کال
٤ـ پټه خزانه، محمد بن داود هوتک، دويم چاپ، ۱۳۳۹ کال
۵ـ پښتانه شعراء، څلورم ټوک، عبدالله بختانی، ۱۳۵۷ کال
٦ـ پښتو ادب کې د مېرمنو برخه، شاجهان، پښتو اکيډيمي پېښور يونيورسټي، ۱۹۹۳م.
۷ـ تفسير يسير، مرادعلي رح، لومړی ټوک، چاپ ... کال
۸ـ خيرالبيان د بايزيد روښان، د ادبياتو او بشري علومو پوهنځی، د پښتو ټولنې په سپارښتنه، ۱۳۵۳ کال.
۹ـ خيرالبيان، تصنيف بايزيد انصاري، ترتيب، تدوين او حواشي حافظ محمد عبدالقدوس قاسمي، پېژندګلو مولانا عبدالقادر، پښتو اکيډيمي، پېښور يونيورسټي، جون ۱۹٦۷م
۱۰ـ د ارزاني خويشکي کليات، پروفيسور ډاکټرسلما شاهين، ډاکټر پروېز مهجور خويشکی، ډايرکټر پښتو اکيډيمي پېښور يونيورسټي، جون ۲۰۰۵
۱۱ـ د پښتو ادبياتو تاريخ (لرغونې او منځنۍ دوره)، زلمی هېوادمل ، لومړی ټوک، ۱۳۷۹ کال
۱۲ـ د پښتو ادبياتو تاريخ، پوهاند ډاکټر زيورالدين زيور، د ساپي پښتوخېړونو مرکز، ۱۳۸٦ کال
۱۳ـ د خپلواکۍ مجله، دويمه دوره، لومړی کال، دريمه ګڼه، د بشري حقونو لپاره د د نړيوالو هڅو لنډ تاريخي بهير، د افغانستان د مطالعاتو مرکز، ۱۳۸۳ کال
۱٤ـ د زړه خواله، عبدالروف بېنوا، ۱۳٤۵ کال
۱۵ـ روښان ياد، د بايزيد روښان د نړيوال سيمينار د مقالو مجموعه، د حبيب الله رفيع په زيار او اهتمام، پښتو ټولنه، ۱۳۵۵
۱٦ـ سيرة النبي، الرحيق المختوم، مولانا صفی الرحمن مبارکپوري، ژباړن: عبدالله خاموش هروي، د سيلاب خپرونې. ۱۳۸۲ کال
۱۷ـ عرفان مجله، سروده های دری مفسر و دانشمند علوم ديني، مرادعلي صاحبزاده، زلمی هېواد مل عرفان مجله، دويمه ګڼه، ۱۳۷۰ کال
۱۸ـ غوره نثرونه، ګل پاچا الفت، د ۱۳۷۳ کال چاپ
۱۹ـ فرهنګ ادبيات جهان، زهرای خانلری، شرکت سهامی انتشارات خوارزمی، چاپ اول، ۱۳۷۵ کال
۲۰ـ کابل مجله، مرادعلي صاحبزاده، عبدالله بختانی، پښتو ټولنه، لومړۍ ګڼه، ۱۳۵۰ کال
۲۱ـ کليله و دمنه، تکانک خپرنيز مرکز، ۱۳۸٦ کال
۲۲ـ ويښ زلميان، عبدالروف بېنوا، پښتو ټولنه، کابل، ۱۳٦٦ لمريز کال.